


د پوهنې وزارت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست


# د ښوونکي کتاب
# د انګلیسي ژبې د تدریس لارښود
# شپږم ټولګی





د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ. ش.


د انګلیسي ژبې د تدریس لارښود شپږم ټولګی





unicef
د هر ماشوم لپاره
برای هر طفل





د پوهنې وزارت

د تعليمي نصاب د پراختيا او د ښوونكو د روزنې معينيت

د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي كتابونو د تاليف لوی رياست

# د انگليسي ژبې

# د تدريس لارښود

## د شپږم ټولگي لپاره

د چاپ کال: 1397 هـ.ش

## مولف

- د سر مؤلف مرستیال جمشید (زینل)
- د سر مؤلف مرستیال غلام ربانی (لودین)
- د مؤلف مرستیال امین دانش

## علمي او مسلكي اډيټور

- د سر مؤلف مرستیال جمشید (زینل)

## د ژبې اډيټور

- د سرمؤلف مرستیال میرویس ځدران

## ديني، سياسي او فرهنگي كميټه

- محمد آصف كوچی

## د څارنې کمېټه

- دكتور اسدالله محقق د تعليمي نصاب د پراختيا، د ښوونكو د روزنې او د ساينس د مركز معين.
- دكتور شېرعلي ظريفي د تعليمي نصاب د پراختيا د پروژې رييس.

## کمپوز

- اميد الرحمن (صديقي)

## ډيزاين

سيد ناصر ديدار

## د چاپ د سمون چارې

- محمدكبير حقمل د نشراتو او اطلاعاتو رييس.



# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی
دا عزت د هـــر افغان دی

کور د سولې کور د توري
هر بچي يې قهرمـــان دی

دا وطن د ټولو کـور دی
د بلوڅـــو د ازبکـــو

د پښتـــون او هزاره وو
د ترکمنـــو د تاجکـــو

ورسره عرب، گوجــر دي
پاميــريان، نورستانيـــان

براهوي دي، قزلباش دي
هم ايمـــاق، هم پشـه يان

دا هيـــواد به تل ځليږي
لکــه لمــر پر شنه آسمـان

په سينــه کې د آسيـــا به
لکـــه زړه وي جـــاويدان

نوم د حق مودی رهبـــر
وايو الله اکبر وايو الله اکبر

# د پوهنې د وزیر پیغام

د لوی خدای ډیر شکر دی چې انسان یې په احسن تقویم پیدا او هغه ته یې د خبرو کولو توان ورکړ او د علم او فکر پر ګاڼه یې سمبال کړ.
ډیر درود دې وي د اسلام پر ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفیﷺ چې د انسانیت ستر ښوونکې او د رحمت، لارښوونې او روښنایی پیغام راوړونکې دی.
ښوونه او روزنه په هره ټولنه کې د بدلون او پراختیا بنسټ دی. د ښوونې او روزنې اصلي موخه د انسان د بالقوه ځواکونو فعالول او د هغه د پټو استعدادونو غوړول دي.
درسي کتاب د ښوونې او روزنې په بهیر کې یو مهم رکن بلل کیږي چې له نوو علمي بدلونونو او پرمختګونو سره اوږه په اوږه د ټولنې له اړتیاوو سره سم تالیف کیږي. درسي کتابونه باید د منځپانګې له مخې خورا بډای وي چې وکړای شي د علومو له نوو لاسته راوړنو سره مل، دیني او اخلاقي زده کړې د نوو میتودونو له لارې زده کوونکو ته ولیږدوي.
دغه کتاب چې اوس ستاسو په واک کې دی، د همدغو پورته ځانګړنو پر بنسټ چمتو او تالیف شوي دی. د پوهنې وزارت تل زیار باسي چې په هیواد کې تعلیمي نصاب او درسي کتابونه د اسلامي ښوونې او روزنې او د ملي هویت د ساتلو پر بنسټ جوړ او له علمي معیارونو، نوو روزنیزو میتودونو او د نړۍ له علمي پرمختګونو سره سم چمتو کړي. د زده کوونکو استعدادونه په ټولو اخلاقي او علمي خواوو کې وغوړوي او په هغوي کې د تفکر او نوښت توان او د پلټنې حس پیاوړی کړي. د خبرو اترو او پیرزوینې د فرهنګ دودول، د هیواد پالنې او د مینې او محبت د حس پیاوړی کول، ښښنه او پیوستون د پوهنې د وزارت نورې غوښتنې دي چې ښایي د لوست په کتابونو کې ورته پام وشي.
درسي کتابونه د ښه او مسلکي ښوونکي له درلودو پرته نشي کولای ټاکل شوې موخې ترلاسه کړي. ښوونکې د ښوونې او روزنې یو مهم جزء او د ښوونې او روزنې د پروګرامونو پلي کوونکې دی. د هیواد له ژمنو او زړه سواندو ښوونکو څخه، چې د تورتم او ناپوهۍ په وړاندې یې جګړه خپله دنده ګرځولې، دوستانه هیله لرم چې د تعلیمي نصاب په دقیق او مخلصانه تطبیق کې د هیواد ماشومان، نجونې او تنکي ځوانان د پوهې، اخلاقو او معنویت لوړو څوکو ته ورسوي.
د هیواد د زده کړې د نظام بری د خلکو له جدي مرستو پرته امکان نه لري. له دې امله له ټولو قشرونو او د ملت له شریفو خلکو، په تیره بیا له کورنیو او د زده کوونکو له درنو اولیاوو څخه هیله لرم چې د معارف د موخو د لاسته راوړو په برخه کې له هیڅ ډول مرستې څخه ډډه ونه کړي. دغه راز له ټولو لیکوالو، پوهانو، د ښوونې او روزنې له ماهرینو او د زده کوونکو له محترمو اولیاوو څخه هیله کیږي چې په خپلو رغنده نظرونو، وړاندیزونو او نیوکو د درسي کتابونو په لاښه والي کې د پوهنې له وزارت سره مرسته وکړي.
لازمه بولم له ټولو ښاغلو مولفانو، د پوهنې وزارت له اداري او فني کارکوونکو او له ملي او نړیوالو بنسټونو څخه، چې د دغه کتاب په چمتو کولو، چاپولو او ویش کې یې زیار ایستلی او مرسته یې کړې، مننه وکړم.
په پای کې له لوي خدایﷻ څخه غواړم چې په خپله بې پایه مهربانۍ له موږ سره د پوهنې د سپیڅلو ارمانونو په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي. انه سمیع قریب مجیب.

د پوهنې سرپرست وزیر

دوکتور محمد میرویس بلخي

# فهرست

# Unit One
## Review
## Lesson one

**مخ:۲**

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي؛ چې:

1- د الفبا توری وپیژني.

2- د الفبا توری ولولي.

3- د الفبا توری ولیکي.

4- خپل نومونه به په انګلیسي ولیکي.

**د لوست میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** فلش کارت، تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ګرانه ښوونکېه! د زده کوونکو سره د سلام ورکولو او احوال پوښتنې څخه وروسته، خپل ځان ورته ورو‌پیژنی او له هغو څخه وغواړئ ترڅو ځانونه معرفي کړي. وروسته د انګلیسي ژبې د زده کړې د ارزښت په هکله زده کوونکو ته څرګند ونې وکړي او لاندې پوښتنې ورڅخه وکړئ.

- آیا ویلای شئ چې د انګلیسي الفبا څوتوری ده؟
- څوک د انګلیسي الفبا توري په لوړ آواز وایي؟
- یو څو توری په انګلیسي ولیکي؟

- زده کوونکو ته وخت ورکړی ترڅو د دویم مخ د letter د برخې توری وګورئ او هغه توری چې ویلای او لیکلای شي د صحیح په علامې سره په نښه کړئ. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ په هغو تورو چې پوهیږئ په لوړ آواز سره ووایي.
- د تورو کار توته چې مخکې موتیار کړي دي زده کوونکو ته وښایاست او له هغو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ تر څو په لوړغږ یې ووایي او د غلطی په صورت کې د بل زده کوونکي څخه پوښتنه وکړئ.
- زده کوونکي په دوه کسییزه ډلوویشي ترڅو د خپلو نومونو د لیکلو طریقه یو بل ته وروښایي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو د تختې مخې ته راشي او خپل نوم ولیکي او د غلطی په صورت کې د زده کوونکې سره د هغه د نوم په لیکلو کې مرسته وکړي.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي:<br>1. څوک ویلای شي چې په انګلیسي ژبه کې څو توري وجود لري؟<br>2. څوتنو زده کوونکو ته د P.Q.Z د تورو کارتونه وښایاست.<br>او له هغو څخه وغواړئ چې نوموړي توري په لوړغږ ولولي. |
| **د لوست لنډیز:**<br>د لوست د تشریح او توضیحاتو وروسته، توري یو ځل بیا تکرار کړئ. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د الفبا توري او خپل نومونه په خپلو څلور کرښو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit one
## Review
## Lesson two and three

**سرليک:**

**مخونه:۳-۴**

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1 - کلمې ولولي او وليکي.

2 - هغه کلمې چې په مخکينی تولګي کې مو زده کړی دي په سمه توګه ولولی او وليکي.

3 - شمېرې ديونه تر لسو پورې په انګليسی وپيژني، ولولي او ويې ليکې.

**دلوست ميتودونه:** ځانګړی او ډله ييز.

**د لوست مرستندويه توکي:** فلش کارتونه، تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

تير لوست دلاندنيو پوښتنو په واسطه وارزوئ.

1 - د غږلرونکو توړلو نومونو ووایاست.

2 - آيا وايلای شی چې ستاسی نوم په کومو تورو ليکل کيږي؟

3 - څوک کولای شي چيC.M.T توري په تخته وليکي؟

همدارنګه د انګيزې د پيدا کېدو په هيله لاندنې پوښتنې وکړئ.

- څوک وايي چې زده کوونکي ته په انګليسي کې څه وايي؟
- آيا ويلای شي چې goat ته په پښتو کې څه وايي؟
- د څلورم ټولګي د انځورونو څخه د يو انځور فلش کارت زده کوونکو ته وښاياست او له هغو څخه وغواړئ چې د هغه نوم ووايي.

- زده کوونکوته وخت ورکړئ ترڅو د کتاب د دريم مخ کلموته وګوري او هغه لغتونه چې پيژني د صحيح په علامې سره په نښه کړئ.
- د زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه و غواړئ ترڅو هغه کلمې چې پيژني په لوړغږ ولولي او د غلطۍ په صورت کې د هغو سره مرسته و کړي او که کوم زده کوونکې د کلمې په لوستلو او ويلوکې ستونزه در لوده مرسته ور سره وکړي.
- د words د برخې د کلمو فلش کارتونو څخه په ګټې اخيستلو، به لوړغږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په لوړغږ يې له تا سو څخه وروسته تکرار کړي.
- زده کوونکي په دوه کسيزه ډلو وويشي چې د څلورم ټولګي هغه کلمې چې په ياد يې نه وي په خپلو کتابچو کې وليکي وروسته د هغو له څو کسانو څخه وغواړئ چې هغه کلمې چې دوي په خپلو کتابچو کې ليکلې دي په لوړ آواز ولولي او معنائې کړي.

| |
|---|
| - بیا هم زده کوونکو ته وخت ورکړي ترڅو هغه شمیرې چې پیژني او لوستلي يې شې د صحیح علامه ورته کیږدي. وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو شمیرې په لوړغږ ووایي او تا سو هم له هغوي سره د صحیح لوستلو او ویلو په برخه کې مرسته وکړئ<br>- د ۱ تر ۱۰ پورې شمیرې په لوړغږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تر تاسې وروسته يې تکرار کړي.<br>- زده کوونکو ته وواياست چې د خپلو مور او پلار د مبایل شمیرې په فرضي توګه ولیکي وروسته له څو تنو څخه وغواړئ ترڅو لیکل شوې د مبایل شمیرې په لوړغږ ووایي |
| **ارزونه:**<br>زده کوونکي د لاندنیو پوښتنو په واسطه وارزوي.<br>1 - د note book،man او school کلمې په کوموتورو پیل شوي دي؟<br>2 - څوک ویلایی شي چې سړي ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>3 - د bus، car کلمې په پښتو کې څه معنا لري؟ |
| **دلوست لنډيز:**<br>د لوست د تشریح کولواو روښانه کولو وروسته د دویم مخ کلمې او د دریم مخ شمېرې یو ځل بیا په لوړغږ ووایي |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د دویم مخ کلمې او د دریم مخ شمېرې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit one
# Review
# Lesson four

**مخ:**۵

**وخت:**یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي: چې

1 - رنګونه وپیژني

2 - رنګونه یو تر بله توپیر کړای شي.

3 - د رنګونو نومونه په انګلیسي و وایي.

**د لوستت د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:**تخته، تباشیر او فلش کارت

**فعالیتونه:**

دلاندنیو پوښتنو په واسطه تیر لوست وارزوي.

1 - د سړي او وزکلموته په انګلیسي کې څه وایي؟

2 - څوک د ۱ تر ۱۰ پورې شمېرې په انګلیسي وایي؟

3 - د مبایل یوه فرضی شمیره په انګلیسي ویلای شي؟

همدارنګه د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست خواته د لاندنیو پوښتنو په وسیله وکړي.

- آیا په زړه پورې رنګ په انګلیسی کې وایلای شي.
- آیا کولای شي د څو رنګونو نومونه پخپله ژبه کې ووایي؟
- آیا کولای شي چې یو څو رنګونه په انګلیسي ووایي؟

- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د ۵ مخ انځورونو ته په ځیر سره وګوري وروسته له څوتنو څخه پوښتنه وکړئ هغه رنګو نه چې پیژني ووایي
- د رنګونو نومونه د فلش کارت په ښودلو سره په لوړ آواز ووایي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په لوړغږیږ و لولي. وروسته زده کوونکي په دوه کسیزه ډلوویشئ لومړی زده کوونکي د رنګونو یو انځورته اشاره کوي او دویم زده کوونکي دي د هغه رنګ نوم ووایي
- زده کوونکو ته په ځانګړی توګه لارښوونه وکړئ ترڅو دهغو رنګونو نومونه چې په انځورونو کې ګوري پخپلو کتابچو کې ولیکي. وروسته له څو زده کوونکو وغواړئ ترڅو د رنګ نوم په تختته ولیکي د غلطی په صورت کې پریږ دی چې بل زده کوونکی دا کار وکړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د خپلي خوښي یوڅو رنګونه پخپلو کتابچو کې ولیکي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ هغه رنګونه چې یې لیکلی دی ووایي او تاسې ورسره په صحیح تلفظ کولوکې مرسته وکړئ.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د زده کوونکو څخه د نوي لوست د زده کړې د ډاډ حاصلو په هیله لاندنې پوښتنې وکړئ.<br>1 - سور رنګ ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>2 - څوک ویلای شي چې د خپل په زړه پورې رنګ ته یې په انګلیسي کې څه وایي؟<br>3 - آیا کولای شئ چې GREEN BLUE،YELLOW ته په پښتو کې څه وایي؟<br>څوک ویلای شي چې څو ډوله رنګونه په انګلیسي پیژنئ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننی لوست کې د ORANGE, YELLOW, GREEN,BLUE, PURPLE د رنګونو نومونه یادکړل او ومو ویل. ښوونکی دې د دې رنګونو نومونه په پښتو کې معنا کړي. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 5 مخ د رنګونو او د خپلې خوښې د رنګونو نومونه پخپلو کتابچو کې دوه ځلې ولیکي. |

# UNIT ONE
# REVIEW
# LESSON five

**سرليک:**

**مخونه:5**

**وخت:** يو درسي ساعت (۴۵ دقيقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1 - د ټولګي دننه شيان وپيژني؟

2 - د ټولګي اړوند شيانو نومونه ووايي.

3 - خپل ځان په ساده ډول معرفي کړي او د نورو نومونه و پوښتني.

**د لوست د تدريس ميتودونه:** پوښتنې او ځوابونه ځانګړې او دوه کسيزه.

**د لوست مرستندويه توکي:** د ټولګي د ننه شيان تخته ،تباشير

**فعاليتونه:** د تير لوست د زده کړې د ډاډ حاصلولو په هيله لاندې پوښتنې وکړئ.

1 - شين رنګ ته په انګليسي کې څه وايي؟

2 - هغه رنګونه چې پيژنی په انګليسي کې ووايي.

د انګيزې د پيدا کولو په هيله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړي:

- د يو درسي ټولګی د شيانو نومونه ووایاست.
- هر کله چې وغواړی د تولګي دننه چې کوم شيان ليکل کيږي په کوم ځای کې ليکي.

- په دوه کسيزه توګه زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې دCLASS ROOM OBJECTS د برخې او انځورونو ته وګوري او يو بل ته د هغوي نومونه ووايي وروسته د هغو له څوتنو څخه پوښتنه وکړي چې په ځانګړي توګه د انځورونو نومونه په لوړغږ ووايي.
- د CLASS ROOM OBJECTS د برخې د انځورونو نومونه په لوړغږ ووايي او د زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې څخه وروسته يې تکرار کړي.
- زده کوونکې په دوه کسيزو ډلو وويشئ ترڅو پخپلو کې د ټولګي د ننه شيانو په هلکه يو د بل څخه پوښتنې وکړئ او ځوابونه ورکړي د مثال په توګه يو زده کوونکې په ټولګي کې د ننه يوشي ته اشاره کوي او بل زده کوونکې د هغه نوم اخلي.
- زده کوونکې په دوه کسيزه ډلو وويشي او دهغو څخه وغواړئ چې د LETS GET TO KNOW EACH OTHERبرخه پخپلو کې کار وکړي. مګر دلته يوځپل دا تمرين په ټولګي کې په عملي توګه د دوه درې زده کوونکو سره اجرا کړي.
- د څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې د LETS GET TO EACH OTHER په لوړغږ سره تمرين کړي. هڅه وکړئ چې د ټولګي د مختلفو ځايونو څخه زده کوونکي وټاکئ چې يو د بل غږ په ښه توګه واوري همدارنګه د جملو په ويلو او جوړولو کې د هغوي سره لازمه مرسته وکړي.

| |
|---|
| |
| **ارزونه:**<br>د ننني لوست د زده کړې د ډاډ په هيله لاندنۍ پوښتنې وکړئ.<br>1 - د څو شيانو نومه په ټولګي کې ووايي؟<br>2 - څوک ويلای شي چې پنسل او پنسل پاک ته په انګليسي کې څه وايي؟<br>3 - له دې امله چې په ټولګي کې د شيانو نومونه په انګليسي ويلای شي څه احساس کوئ؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په ټولګي کې د شيانو نومونه زده کړل. د شيانو د انځورونو نومونه په لوړغږ ووايي او زده کوونکی دي له تا سي څخه وروسته تکرار کړي. |
| **کورنۍ دنده:**<br>د زده کوونکو څخه وغواړئ چې د class room objects برخه پخپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit Two
## Lesson one
## My Nationality

**مخونه:**۸-۹

**وخت:**یو درسي ساعت(۴۵ دقیقې)

**موخې:**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1. خپل ځانونه معرفي کړي.
2. یو او بل معرفي کړای شي.
3. د خبرو اترو اصطلاح ګانې و پیژني او په جملو کې یې استعمال کړي.
4. خپل ملیت و پیژني.
5. نور ملیتونه وپیژني.
6. د ملیتونو په هکله یو د بل سره پوښتنې و کړي او ځوابونه ورکړي.

**نوي لغتونه:**

Cousin, speak, little, meet, nice, originally, welcome, great, beautiful, country, India, France, Spain, brazil, British, Brazilian, Indian, French

( د کاکا زوی او ماما زوی، خبرې کول، لږ، ملاقات کول، ښایسته، اصلي، په خیر راغلی، لوی، ښایسته، مملکت، هند، فرانسه، اسپانیا، برازیل، بریتانیا، برازیلی، هندی، فرانسوی

**نوي اصطلاح ګانې:**

Nice to meet you. ستاسی لیدلو ته دیر خوشحاله شو.

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی اوډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:**تخته او تباشیر.

**فعالیتونه:**

د زده کوونکو څخه د تیر لوست د زده کړې د ډاډ حاصلو په هیله لاندنې پوښتنې وکړې:

1 - د څو شیانو نومونه په ټولګي کې واخلې ؟
2 - چې د توري تختې او دروازې نومونه په انګلسی ووایې؟

د دی لپاره چې د نوي لوست لپاره انګیزه پیدا کړي لاندنې پوښتنې وکړي:

- چې زموږ ملیت څه شي دی؟
- آیا څوک شته چې په دووژبو خبرې وکړای شي؟
- څوک کولای شي د څوهیوادونو نومونه ووایې؟

- داتم مخ خبرې اترې یا conversation دوه وارې په لوړغږ ووایې او له زده کوونکو څخه وغواړئ تاسوورته په ځیر سره غوږ کیږدې وروسته هغوی په دوه کسیزه ډلوویشئتر څو ډیا لوګ د ځان سره تمرین کړي.

- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو ډیالوګ په لوړغږ سره ووایي او تا سی د هغوي سره د صحیح لوستلو او تلفظ کولو په وخت کې پوره مرسته وکړئ. وروسته له زده کوونکو څخ وغواړئ ترڅو تاسوته په څیر سره غوږ ونیسی او هغې کلمې چې په معناېې نه پوهیږي ولیکي.
- یو ځل بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې practice د برخې ۸-۹ مخونه له خپل هم قطار سره تمرین کړي.
- خو لومړی تاسو نومړی تمرین دیویا دوو زده کوونکو سره کار وکړئ، ترڅو زده کوونکي د پوښتنو کولو او ځواب ورکولو په طریقه باندې پوه شي وروسته د ټولګي د مختلفو برخو د څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو په لوړغږ سره کار وکړي.
- د practice د برخې تمرین د ۹ مخ یو ځل بیا په لوړغږ ولولي او له زده کوونکو وغواړي چې تمرین یو د بل سره کارو کړي او د تمرین په بهیر په ټول ټولګي وګرځي هر هغه څوک چې د تمرین کولو په وخت کې د کلمو په تلفظ او لوستلو کې ستونزې ولري له هغو سره مرسته وکړئ.
- له زده کوونکو څخه په دوه کسییزه توګه وغواړي چې تمرین په لوړغږ سره ووایي د مثال په توګه لومړی زده کوونکي پوښتنه وایي او دویم زده کوونکی ځواب وایي. د دی فعالیت په جریان کې هغه زده کوونکي چې د لوستلو او د کلمو په تلفظ کې ستونزې ولري مرسته ورسره وکړئ.
- یو ځل بیاد practice د برخې جملې په لوړغږ ولولي اوويي ژباړي او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسو ته په څیر سره غوږ ونیسي او دهغو کلمو په معنا چې ته پوهیږي ولیکئ.

**ارزونه:**

ګران ښوونکی صاحب! د لوست د زده کړی د ډاډ حاصلولو په هیله له زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړئ.

1 - د where is he/she from? پوښتنې ته ځواب ورکړی.
2 - څوک کولای شي چې د Is he from Spain? پوښتنې ته ځواب ووایي؟
3 - د ملیت او دکاکا د زوي کلمو ته په انګلیسي څه ووایي؟
4 - آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟

**د لوست لنډیز:**

تا سو په نننی لوست کې د Cousin, speak, little, meet, nice, originally, welcome, great, beautiful, country, India, France, Spain, brazil, British, Brazilian, Indian, French کلمې ولوستلی.

**کورنی دنده:**

زده کوونکو ته لارښونه وکړئ چې د ۸ او ۹ مخونو د practice د برخې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي او ویې لولي.

# Unit two
# Lesson two
# My Nationality

**سرلیک:**

**مخ:**10

**وخت:**یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې

**موخې:**زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1 - د ?Where are you from پوښتنې سره بلدتیا پیدا کړي او هغې ته صحیح ځواب ورکړي؟

2 - د ?Where are you, he,she, they, from پوښتنو سره سوال او ځواب وکړی؟

3 - خپل ځان معرفي کړي او د کتاب نه دګتې اخیستلو په واسطه د خپل ځان په هکله ولیکي.

4 - نوې کلمې او اصطلاح ګانو باندې و پوهیږي او په ورځنې ژوند او خبرو اتروکې یې استعمال کړي.

• Province, old (زور، ولایت)

**د لوست د تدریس مرستندویه توکي:**

**فعالیتونه:**

د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو تیر لوست ښه زده کړی دی لاندېنی پوښتنې ترې وکړئ.

۱- د Cousin, nationality کلمې په پښتو ووایې.

۲- څوک کولای شي چې د ?Where is he from پوښتنې ته ځواب ووایې؟

همدارنګه ددې له پاره چې زده کوونکي ټولګې او نوې لوست ته متوجه کړئ. لوست دیوې ټوکې په ویلو او یا لاندېنیو پوښتنو سره پیل کړئ.

- آیا کولای شي خپل ځان په انګلیسي معرفي کړي؟
- آیا تر اوسه چا د خپل ځان په باره کوم متن لیکلی دی؟
- د ?Where is he from پوښتنې ته ځواب ووایې؟

- زده کوونکي په دوه کیېزه ډلو وویشئ ترڅو د کتاب د ۱۰ مخ د practice برخه پخپلو کې کاروکړي خو له هغې مخکښې جملې په لوړغږ ولولي او له زده کوونکو وغواړئ چې تاسې ته غوږ شي وروسته له څو زده کوونکو څخه په دوه کسییزه توګه وغواړئ تر څو تمرین پخپلو کې سوال او ځواب وکړي خو پام وکړئ چې ټول تمرین په دوه تنو باندې اجرا نه کړئ هڅه وکړئ چې په دې تمرین کې ټولو زده کوونکو ته ونډه ورکړئ.
- د بل ځل له پاره جملې په لوړغږ سره ووایې او زده کوونکو ته یې وژباړئ.
- د ۱۰ مخ د .Its time to read د برخې متن په لوړغږ ووایې او له زده کوونکو څخه وغواړئ

| |
| --- |
| ترڅو تاسې ته په ځير سره غوږ شي وروسته هغوي ته لارښوونه وکړی ترڅو متن په پټه خوله ولولي او بايد هيرنکړو چې هغوی ته په پټه خوله د متن د لوستلو په هکله لازمه لارښوونه وکړو.<br>- د څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ ولولي او تاسو د هغو سره د سختو کلمو په ويلو او تلفظ کې مرسته وکړئ – بيا يو ځل بيا متن په لوړغږ ولولي اوويې ژباړي او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسو ته په ځير سره غوږ ونيسي او هغه کلمې چې په معنا يې نه پوهيږي پوښتنه وکړی او د ځان سره يې يادابنت کړی. |
| **ارزونه:**<br>د دی له پاره چې وپوهيږئ زده کوونکو مونوي لوست په ښه توګه زده کړی دی لاندېنې پوښتنې وکړئ:<br>1 - څوک کولای شي د Where are/is you from? پوښتنې ته ځواب ورکړي؟<br>2 - آيا کولای شي په لنډه توګه خپل ځان په انګليسي معرفي کړئ؟<br>3 - د ننني لوست څخه موخه زده کړل؟<br>4 - آيا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنديز:**<br>تاسې په نني لوست کې لاندې پوښتنې ته د ځواب ورکولو طريقه زده کړه.<br>Where are/is you  he/she/ they from?<br>او همدارنګه مويومتن د ځان د معرفي کولو په هکله زده کړ او ومولوست. |
| **کوني دنده:**<br>زده کوونکې دی د کتاب د مثال په مرسته خپل ځان د متن په بڼه معرفي اووليکي. |

## Unit two
## Lesson three
## My Nationality

**مخ:** ۱۱

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1 - د معرفي کولو اړوند اصطلاح ګانې وپیژني.

2 - خپل ځان په لنډ ډول معرفي کړي.

3 - نوي کلمې وپیژني او په جملو کې به يې استعمال کړای شي.

4 - د نويو کلمو په معنا پوه شي.

**نوي لغتونه: مطالعه کول- ژوندون- ټولګي- پایتخت- کابل- افغان**

Study, live, grade, capital,Kabul,Afghan

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:** ګران ښوونکیه! ددې له پاره چې د تیر لوست د زده کړې په هکله ډاډ حاصل کړئ، له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.

1 - آیا کولای شی چې د Name, province, study کلمې په پښتو معنا کړئ؟

2 - څوک کولای شي چې دWhere are you from? پوښتنې ته ځواب ووايي؟

3 - آیا کولای شې چې په انګلیسي ووايې چې څو کلن دی؟

همدارنګه د دی له پاره چې د زده کونکو پام د نوي لوست او ټولګي ته را واړوي دیوې ټوکې په ویلو او یا د لاندېنیو پوښتنو په کولو سره پیل کړئ.

- څوک کولای شي خپل ځان په انګلیسي معرفي کړي؟
- آیا تر اوسه مو د خپل ځان په برخه کې څه شي لیکلي دي؟
- آیا د capital, live, grade کلمو سره بلدیاست؟

- د ۱۱ مخ د practice د برخې متن په لوړغږ ووایاست او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسو ته په ځیر غوږ ونیسی وروسته زده کوونکو ته وخت ورکړی چې متن د ځان سره په پټه خو له ولولي او مطالعه يې کړي.
- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ ووايي او تاسو هم د هغوي سره په تلفظ کې مرسته وکړئ.
- یو ځل بیا متن په لوړغږ ولولي اوويې ژباړئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ د هغو کلمو په معنا چې نه پوهیږي یاداښت يې کړئ.
- د ۲ شمېرې کلمې پر تخته ولیکې او په لوړغږ يې ولولي او د زده کوونکو سره يې یو ځای معنا کړي وروسته هغوي ته وخت ورکړئ چې هره کلمه په جمله کې استعمال او پخپلو کتابچو کې ولیکي.
- د زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو د ټولګي مخې ته راشي او یوه جمله پر تختې باندې ولیکي.

| |
|---|
| - زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې ترخو پورتنی متن یو ځل بیا ولولي او د هغو کلمو لاندې چې په تلفظ او یا معنا کې یې ستونزه لري کرښه وکاږي. وروسته کلمې پر تختې ولیکي او هغه تلفظ او معنا کړي. |
| **ارزونه:**<br>د دی له پاره چې ډاډ حاصل کړئ چې زده کوونکو ستاسې لوست زده کړی دی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.<br>۱- څوک کولای شي چې د Grade, afghan, study کلمو له پاره یوه یوه جمله جوړه کړي؟<br>۲- آیا د دې لوست اړوندې کلمې په ورځنیو خبرواتروکې استعمالولای شي؟<br>۳- د نني لوست څخه موڅه زده کړل؟<br>۴- آیا نني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې د ځان په هکله د یو متن دلیکلو طریقه او همدارنگه نوې کلمې ولوستلې. د Afghan, study, Kabul, live, grade, capital کلمې په لوړغږ ولولی او معنا یې کړئ.<br>کورنی دنده: زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د Afghan, study, Kabul, live, grade, capital کلمو له پاره یوه یوه جمله جوړه او پخپلو کتابچو کې یې ولیکې او بیا یې معنا کړي. |

**Unit two**
**Lesson four**
**My nationality**

**مخونه:** 12–13

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- د معما د حل کولو په طریقه پوه شي.
2- نوې کلمې ولوستلی او ولیکلی شي.
3- دنویو کلمو په معنا به پوه شي.
4- نوې کلمې هیجا او سپیل کړای شي.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**ددې له پاره چې پوه شي زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست زده کړی دی هغوي دلاندنیو پوښتنو په واسطه وارزوي.

1- د live, grade کلمې په پښتو معنا کړی؟
2- آیا کولای شي چې د ټولګي او مطالعې کولو کلمې په انګلیسي ووایي؟

د دی له پاره چې د زده کوونکو توجه د نوي لوست زده کولوته جلب کړو د یوې ټوکې په ویلو او یا لاندنیو پوښتنو سره نوي لوست پیل کړي.

- څوک کولای شي چې د S-B-U د تورو څخه یوه کلمه جوړه کړي؟
- د capital کلمه هیجا یا سپیل کړي.

د 12 مخ د Writing دفعالیت څخه د مخه زده کوونکو ته لارښوونه وکړی ترڅو کلمې په پټه خوله د ځان سره مطالعه کړی او د کلمې داړوند تصویر لاندې ولیکي.

- مخکې له دې څخه چې زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو چې معما ډکه کړي لومړی هغوی ته د معما د حل کولو طریقه  وروښایاست هغوي ته یادونه وکړی هغه کلمې چې د Cross د لغت لاندې لیکل شوي وي په افقي ډول یعنې د کیڼې خوا څخه ښي خواته موقعیت لري او هغه کلمې چې د down د لغت لاندې لیکل شوي وي په عمودي توګه د پاس څخه لاندې خواته په جدول کې موقعیت لري.
- زده کوونکی په څلورو یا پنځو ډلووویشئ ترڅو معما په پنسل ډکه کړی. وروسته تاسې معما په تخته رسم کړئ او د هرې ډلې د نماینده نه وغواړئ ترڅو د تختې مخې ته راشي او هغه کلمې یې چې په معما کې پیدا کړي دي په معما کې ولیکي. د غلطۍ په صورت کې پریږدی چې د بلې ډلې څخه یو تن دا نوبت وکړي او معما حل کړي.
- زده کوونکي په دوه کسیزه ډلوویشي او هغوي ته لارښوونه وکړئ چې د 12 مخ د Writhing د برخې کلمې د 13 مخ د Spelling د برخې د مثال سره سم پخپلو منځو کې تمرین کړي تاسو کولای شي چې یوه کلمه د نمونې او مثال په توګه زده کوونکو سره عملاً کار وکړي.

**ارزونه:**

د زده کوونکو څخه د نوي لوست د زده کړې د ډاډ حاصلولو په هيله لاندنې پوښتنې وکړي.

1- د Apple, Afghanistan, Spain کلمې هيجا کړي.

2- آيا د Shirt, Bus او Map کلمې معنا کولای شئ؟

3- د نننې لوست څخه موخه زده کړل؟

4- آيا نننې لوست درته په زړه پورې و؟

**د لوست لنډيز:**

تاسې په نننې لوست کې د معما د ډکولو طريقه او همدارنګه د کلمو د هجا کولو تمرين ولوست او تمرين مو وکړ.

کورنۍ دنده: زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 12 مخ د Writing د برخې ورکړل شوي معما پخپلو کتابچو کې رسم او ډکه يې کړئ.

## د 12 مخ د writing د برخې د معما حل



# Unit two
## Lesson Five
## My Nationality

**مخونه:** 13-14

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- نوم او ملیت او د هېوادونو بیرغونه وپېژني.
2- هېواد- ملیت بیرغ د هېوادونو تشخیص کړی شي.
3- یو او بل ته معرفي کړي.

**نوي لغتونه:**

England- Enghlish

Iran, Iranian, india, Indian, Rusia, Rusian, France, French, America, American, Germany, German,

( انګلستان، انګلیسی، ایران، ایرانی، هند، هندی، روسیه، روسی، فرانسه، فرانسوی، امریکا، امریکایی، جرمن، جرمنی)

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته، تباشیر، او فلش کارت

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې له پاره چې پوه شي زده کوونکو د تیرې ورځې لوست تکرار او یاد کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.<br>1- د منې او نقشې کلمې په انګلیسي معنا کړي.<br>2- څوک غواړي چې د Shirt او Indiaکلمې هیجا او یا سپیل کړي؟<br>د زده کوونکو د پاملرنې د راګرځولو په هیله لاندنې پوښتنې وکړی.<br>- د هېواد بیرغ څورنګه لري؟<br>- آیا ویلای شي چې زموږ د هېواد په ګاونډیتوب کې کوم هېوادونه موقعیت لري؟<br>- د کتاب د 13 مخ د look, read, and memorize برخې نوم او د هېواد دونو بیرغونه چې په فلش کارتونو کې دي زده کوونکو ته وښایاست په لوړغږیې ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې وروسته یې تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکوو څخه وغواړئ ترڅو کلمې په لوړغږ ولولي.<br>- زده کوونکې په دوه کسییزه تنووویشی ترڅو پخپلو منځو کې د هېوادونو نومونه او ملیتونه کارو کړي د مثال په توګه یو زده کوونکې د یوه هېواد نوم وایي او بل زده کوونکې د هغه ملیت ووایې.<br>- د یوه هېواد د بیرغ په ښودلو سره له زده کوونکوو څخه وغواړئ چې د هغه نوم او ملیت ووایې.<br>- زده کوونکې په څلور کسییزه ډلو وویشئ ترڅو په ډله ییزه توګه د کتاب د 14 مخ د Group work برخه یو د بل سره کارو کړي څو لومړی دا تمرین په عملي توګه له څو تنو زده کوونکو سره اجرا کړي. |
| **ارزونه:** د لوست د زده کړې د ډاډ حاصلولو په هیله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړی.<br>1- په دی لوست کې موکوم نوي شیان زده کړل؟<br>2- څوک کولای شي خپل یو ټولګیوال موږ ته معرفي کړي؟ |

| |
|---|
| 3- د Iran او India ملیتونه په انګلیسي ووایي. |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د هېوادونو نومونه ملیتونه او د هغوی بیرغونه و پیژندل( د هېوادونو نومونه او ملیتونه یو ځل بیا زده کوونکو ته تکرار کړئ) همدارنګه د یو ملګري د معرفي کولو طریقه مو یاده کړه. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د هېوادونو نومونه ملیت په خپلو کتابچو کې ولیکي همدارنګه د هغوی څخه وغواړئ چې د کتاب د 14 مخ د Group work د برخې ورکړل شوي مثال په ډول یو مثال ولیکي. |

# Unit Three
## Daily activities
## Lesson one

**مخونه:**16

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1- دوخت په ارزښت پوه شي.

2- دوخت په باره کې به خبرې اترې وکړای شي.

3- دوخت په اړوند کلمې او اصطلاح ګانې پوه شي او په ورځنو خبرو اتروکې به د هغو څخه ګټه واخستلای شي.

**نوي لغتونه:**

When, Relax, Classmate, Sound, great, Start,

( څه وخت، استراحت، همصنفی، غږ، دیر عالی، شروع – پیل)

**اصطلاح ګانې:**

That sound great, That is fine thank you.

( دیر عالی دي، ښه دی مننه)

**د لوست د تدریس میتودونه:** دوه کسییزه

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر.

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو تیر لوست زده کړی دی لاندېنی پوښتنې ترې وکړئ.<br>1- خپل یو ټولګیوال موږ ته معرفي کړي.<br>2- څوک په انګلیسي کولای شي چې زموږ هېواد بیرغ څو رنګونه لري؟<br>همدارنګه د زده کوونکو د پام راګرځولو په هیله نوي لوست  په لاندنیو پوښتنو سره پیل وکړي.<br>• آیا تاسو دورځنیوو کارونو د سرته رسولو له پاره مهالوېش لرئ؟<br>• څوک کولای شي د خپل ورځنیو کارونو مهالوېش ووایي؟<br>• ولې اړینه ده چې د خپلو ورځنیوو کارونو د پاره مهالوېش ولرو؟<br>- د کتاب د 16 مخ د Conversation د برخې ډیالوګ په لوړ آواز ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ تاسو ته په ځیر سره غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکې په دوه کسییزه ډلو وویشي ترڅو پخپلو منځو کې ډیالوګ تمرین کړي وروسته له څو ډلونه وغواړئ ترڅو ډیالوګ په لوړغږ ولولي او تاسې هغو سره د کلمو په تلفظ او جملو کې مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکو ته وخت ورکړئ ترڅو یو ځل بیا ډیالوګ پخپلو منځو کې ولولي او دهغو کلمو په تلفظ او معنا کې چې ستونزې لري د هغې لاندې کرښې وکاږي او پوښتنه وکړي. |
| **ارزونه:**<br>د لوست د ښه لیږد او انتقال په موخه لاندنی پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړي.<br>1- څوک د What do you do in the afternoon? پوښتنې ته ځواب ویلای شي؟ |

| |
|---|
| 2- د I stay at home and relax ? جمله معنا کړی.<br>3- دورځنیو کارونو د سرته رسولو مهالوېش څه ګټه لري؟ او ولې اړین دي؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې نن ورځ دورځني فعالیتونو اصطلاح ګانې زده کړئ. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې ډيالوګ په کورکې تمرین کړي. |

**Unit three**
**Daily activities**
**Lesson two**

**مخونه:** 17–18

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي به لوست په پای کې وکولای شي چې:

1– د اونۍ ورځې په انګلیسي وپیژني.
2– د اونۍ دورځو په هکله پوښتنې وکړي او ځوابونه یې ورکړی شي.
3– ځینو کارونو د اجرا له پاره د مهالوېش په ارزښت پوه شي.
4– په نوېو کلمو به پوه شي او په ورځنیو خبرواتروکې به یې استعمال کړای شي.

**نوي لغتونه:** shopping, sports, library

(لوبې، پیرودل، کتابتون)

**اصطلاح ګانې:**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** جنتري– تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړئ چې زده کوونکو موتیر لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1– د What do you do in the Morning? پوښتنې ته ځواب ووایې؟
2– څوک ویلای شي چې دورځنیو کارونو مهالوېش څه ګټې لري؟

د زده کوونکو پام راګرځولو له پاره نوي لوست په یوې ټوکې کولو سره پیل کړي.

- زده کوونکي په دوه کسیزه ډلوویشئ او له هغوی څخه وغواړئ ترڅو د کتاب د 17 مخ د Exercise د برخې فعالیت یو د بل سره کارو کړي د مثال په توګه لومړی زده کوونکې د یو کتار نه پوښتنه کوي او دویم زده کوونکې د بل کتار نه ځواب ورکوي خو لومړی دا برخه پخپله په لوړ آواز ووایي او زده کوونکو ته وواياست چې تاسې ته غوږ ونیسي.
- جنترې ټولګي ته راوړئ او زده کوونکو ته داونۍ ورځې عملاً وروښایاست او همدارنګه د رخصتیو دورځو رنګو نه هم هغوي ته وروښایاست چې په جنترۍ کې ښودل شوي دي.
- داونۍ ورځې په تختې ولیکئ او یایې د جنترۍ له مخې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې وروسته یې تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې اونۍ ورځې رخصتۍ او دوخت اصطلاح ګانې په لوړغږ ولولي.
- د کتاب د 18 مخ د Exercise د فعالیت برخه په لوړغږ ولولي او ویې ژباړي او د زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسو ته په ځیر سره غوږ ونیسي.
- زده کوونکي په دوه کسیزه ډلوویشۍ او د هغو څخه وغواړئ ترڅو پخپلو منځو کې په تمرین کارو کړي د مثال په توګه لومړی زده کوونکې پوښتنه کوي او دویم زده کوونکې ځواب ورکوي.
- دا کار او فعالیت په ځنځیري توګه سرته ورسوئ. د مثال په توګه یو زده کوونکی پوښتنه کوي او دویم زده کوونکې ورته ځواب ورکوي بیا دوهم زده کوونکي پوښتنه کوي او ترڅنګ یې دریم زده کوونکي

ځواب  ورکوي او په دې ډول ټول زده کوونکي په فعالیت کې ونډه اخلي.

- همدارنګه د ټولګي مخ یا منځ کې ودریږئ لمرختیځ او لمر لویدیځ زده کوونکو ته وروښایاست علاوه پردې هغه وختونه چې دشپې د 12 بجو را په دې خوا پیل کیږي- او د ورځې تر 12 بجو پورې د سهار په a.m نامه یادیږي او د غرمې د 12 بجو نه تر د شپې 12 بجو پورې وختونه د ماسپښین نه وروسته وختونو یا p.m په نامه یادیږي.

**ارزونه:**

د لوست د زده کړې نه د ډاډ حاصلو په هیله زده کوونکو دارزونې په هیله لاندنې پوښتنې وکړئ.

1- د What days do you go to school? پوښتنې ته ځواب ووایې.

2- څوک کولای شي داونۍ دورځو نومونه په انګلیسي ووایي؟

3- د شپې د کوم ساعت نه وروسته a.m پیل کیږي؟

4- د نن‌ني لوست نه موږ څه زده کړل؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نن‌ني لوست کې داونۍ ورځې او همدارنګه دورځنیو کارونو په هکله سوالونه ولوستل. داونۍ ورځې یو ځل بیا ووایي.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کتاب د 17 مخ د Exercise برخې پوښتنې ځواب او پخپلو کتابچو کې ولیکي.

**Unit three**

**Daily activities**

**Lesson three and four**

**مخونه: 19-20**

**وخت:**یو درسي ساعت(45) دقيقې

**موخې:**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- یاددښت ولیکې

2- مهالویش جوړ کړای شي.

3- د یاددښت کولو په ارزښت پوه شي او په ورځني ژوند کې د هغې نه ګټه واخلي.

4- د کارکولو د مهالویش په ارزښت پوه شي.

5- نوي لغتونه:

Like, life, structured, enough, article, teach, manage,starts, smoothly, sheets, lined, unlined, paper, write down, tasks, sleeping bathing, create, daily, schedule.

( خوشول، ژوندون، منظم، کافی، مقاله، تدریس، اداره، شروع، هموار، پانی، خط کشی، بی خط کشی، پانه، لاندی نوشته کول، دنده، ویده کیدل، لامبل، تولیدول، روځنی، مهال ویش)

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی.

**د لوست مرستندویه توکي:**تخته او تباشير

| |
|---|
| **فعالیتونه:**ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړی زده کوونکو موتیر لوست زده کړی دی هغوي په لاندنې پوښتنو سره وارزوئ.<br>1- د اونۍ د ورځو نومونه په انګلیسي ووايي.<br>2- د What days do you play soccer? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>د دی له پاره چې د نوي لوست د زده کړی له پاره مود زده کوونکو پام را اړولی وي دلاندنې پوښتنې ترې وکړئ.<br>- څه وخت چې بازارته دسودا اخیستلو له پاره ځې د ځانه سره یو نوملړیالست لری؟<br>- د یاددښت درلو دل موږ ته څه ګټه لري؟<br>- د How to create a daily schedule? برخه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تا سوته په ځیر سره غوږ ونیسي.<br>- زده کوونکو ته وخت ورکړئ تر څو متن د ځان سره په پټه خوله ولولئ او دهغو کلمو او لغتونو لاندې کرښې وکاږي چې په معنا او تلفظ کې يې ستونزې ولري. وروسته د هغو له څو تنو څخه وغواړئ چې متن په لوړ غږ ووايي او تاسې ورسره د تلفظ کولو دستونزو لرلو په وخت کې مرسته وکړئ.<br>- متن یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوويې ژباړئ او د زده کوونکو څخه وغواړئ چې د هغو کلمو په |

| |
|---|
| تلفظ او معنا کې چې ستونزې لري ښه پام ورته وکړئ. |
| **ارزونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډه حاصل کړئ زده کوونکو ستاسې لوست ښه زده کړی دی د څو زده کوونکو څخه لاندنې پوښتنې وکړئ.<br>1- څوک کولای شي د یاددښت د لیکلو ۶ پړاوونو نه یوه یادوه یې ووایي؟<br>2- د یاددښت لیکل څه گټې لري؟<br>3- آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننې لوست کې د یاددښت لیکل زده کړل؟ |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې دورځنیو کارونو یو مهالوېش جوړاو او پخپلو کتابچو کې ولیکي؟ |

**Unit three**
**Daily activities**
**Lesson five**

**مخ:21**

**وخت:** یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- د خپلو ځينو کارونو په هکله پوښتنې وکړي او ځوابونه ورکړي.

2- د کارونو د سرته رسولو له پاره دورځنيو مهالوېش دلرلو په ارزښت پوه شي.

**د لوست د تدریس میتودنه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشير

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړی زده کوونکو موتیر لوست په کورکې ویلای دی لاندنې پوښتنې ورځخه وکړئ.<br>1- څوک دیاددښت کولو یوه پړاو ویلای شئ؟<br>2- آیا دورځني یاددښت کولو ارزښت بیانولی شئ؟<br>د دی له پاره چې د نوي لوست په هکله یوه انګیزه پیدا کړئ او د زده کوونکو پام نوي لوست ته راواړوئ یوه په زړه پورې ټوکه وکړئ.<br>- زده کوونکې په دوه کسییزه ډلو وویشي او د هغوي نه وغواړئ چې د کتاب د مثال مطابق یو له بل څخه پوښتنې وکړي او ځوابونه ورکړی لومړي تاسو د کتاب مثالونه عملاً د یو یادوه زده کوونکو سره سرته ورسوئ.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ دور کړل شوي جدول سره سم یو جدول پخپلو کتابچو کې وکاږي وروسته دې له درې تنو ټولګیوالو څخه دهغوی داونی د کارونو په هکله پوښتنې وکړئ او جدولونه دي بشپړ او تکمیل کړې په لومړي وار تاسو جدول په تخته رسم کړئ او د بیلګې په توګه هغه ډک او تکمیل کړئ.<br>- څو زده کوونکو ته په ځانګړی توګه لارښوونه وکړئ ترڅو هغه پوښتنه چې د خپل ټولګیوال څخه یې کړي ده او جدول یې ډک کړي دی په لوړغږ سره ولولي او د جدول د نه بشپړیدو په وخت کې ورسره مرسته و کړئ ترڅو پوښتنه وکړي او د خپل ټولګیوال څخه و پوښتني او جدول ډک کړي. |
| **ارزونه:**<br>هغه پوښتنې چې باید له زده کوونکو څخه وشي.<br>1- د یاددښت لرلو څخه موخه څه ده؟<br>2- د What do you do every morning? پوښتنې ته ځواب ووایې؟<br>**3-** د نننې لوست څخه موخه زده کړل؟ |

| |
|---|
| |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننې لوست کې د خپلو او نورو دورځنیو فعالیتونو په هکله پوښتنې کول او ځوابونه ورکول زده کړل او همدارنګه مو د معلوماتي جدولونو د ډکولو طریقې زده کړې |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د writing د برخې د جدول په څېر یو جدول پخپلو کتابچو کې رسم کړي او د خپلو کورنیو دغړو څخه د پوښتنو په کولو سره هغه تکمیل او بشپړ کړی. |

# Unit Four

## Abilities

## Lesson one

**مخونه:23-24**

**وخت:**یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1- د توان لرلو د کلمې په منظور به پوه شي.

2- ډیالوګ و لوستلای شي.

3- د توان لرلو په اړوندکلمې او اصطلاح به پوهه شي او په ورځنیوو خبروا تروکې به د هغو څخه ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:**painter, can, photography, photo, paint, ride, cook, swim

لامبل، آشپز، سپریدل، رنګ، عکس، عکس اخیستل کول، رنګمال

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:**تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دی له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکې مو په کورونوکې خپل لوستونه تکرار کړي دي دارزونې په هیله تري لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1- د?What do you do every morning پوښتنې ته ځواب ووایي؟<br>2- د ورځنیوو کارونو د سرته رسولو له پاره د کاري مهالوېش څه ګټې لري؟<br>د دی له پاره چې د زده کوونکو حواس او فکر مونوي لوست زده کړې ته را اړولې وې او انګیزه مو پیدا کړې وي د زده کوونکو څخه دا لاندنې پوښتنې وکړی.<br>- په کور کې د کومو کارونو د سرته رسولو توان لري؟<br>- آیا بوټوته او به ورکولی شی؟<br>- د ?Can you ride bicycle پوښتنې ته ځواب ورکړئ؟<br>- آیا کېسی یا چېستانونه ستاسې د پوهې په زیاتیدوکې مرسته کولی شي؟<br>- نننی لوست په د کومې موضوع په هکله وي؟<br>- د 23 مخ د ډیالوګ برخه په لوړغږو لولې او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته زده کوونکي په دوه کسیزه ډلوووېشئ ترڅو محاوره په پټه خوله د ځان سره تکرار کړي او د هغو کلمو د تلفظ او معنا په هکله چې ستونزې لري کرښې ورلاندې وکاږي د فعالیت په وخت کې هڅه وکړئ چې د ټولګي ټولې برخې وګورئ او و څاري.<br>- د زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ ترڅو محاوره په لوړغږ ولولې او تاسو د هغو سره په تلفظ او جملې جوړولوکې مرسته وکړي. |

| |
|---|
| - د زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو عبارت په لوړغږ ولولي او تاسې د هغوی سره په ښه تلفظ کولو او جملو جوړولو کې مرسته وکړي. وروسته د محاورې عبارت بیا په لوړغږ ولولي اوويې ژباړي.<br>- د زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ چې د 24 مخ د Ask and answer برخه چې د محاورې په هکله ده پخپلو کې په لوړ غوږ ولولي او کاروکړئ، د مثال په توګه یو زده کوونکی پوښتنه کوي او دوهم زده کوونکې د مخکښني مخ د محاورې څخه په استفادې ځواب ورکوي په هغه صورت کې چې دویم زده کوونکې ځواب ورنکړای شو د بل زده کوونکي څخه وغواړئ چې پوښتنې ته ځواب ووايي وروسته محاوره یو ځل پیاولولي اوويې ژباړي.<br>- د 24 مخ د listen and report د برخې عبارت په لوړغږ و لولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي او له تاسې وروسته يې تکرار کړي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله له زده کوونکو څخه لاندنې پوښتنې وکړئ.<br>1- د Can you play volleyball? پوښتنې ته ځواب ووايي؟<br>2- د ride, pain کلمې په پښتنو وژباړي؟<br>3- د نننې لوست څخه موخه زده کړل؟<br>4- آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننې لوست کې نوې کلمې او عبارتونه ولوستل. ښوونکی صاحب د listen and report د برخې کلمې او عبارتونه په لوړغږ ولولئ. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کتاب 4 مخ د Ask and answer برخې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ او پخپلو کتابچو کې يې ولیکي. |

## Unit four
## Abilities
## Lesson two

**مخونه:**25– 26

**وخت:**یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1- متن په صحیح توګه ولولي
2- د یوښه لوستونکې په اصولو پوه شي
3- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځني خبرو اتروکې له هغوي نه ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** Hard, people, brain, symbols, understand, meaning, develop, skill, helpful, future, always,few, step, tip, prepare, use, quite, place, create

مهارت، پراختیا، معنی، پوهیدل، علامی، مغز، خلك، سخت، مرسته کوونکی، راتلونکی، تل، څو دانی، قدم، آماده کی ،مکمل، ځای، تولیدول

**نوي اصطلاح ګانې:**

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:**تخته او تباشیر.

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دی له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ چې زده کوونکو مو تیر لوست په کورونو کې تکرار کړی دی لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1- د Can you ride bicycle? پوښتنې ته ځواب ووایې<br>2- د paint, swim د کلمومعنا په پښتو وایې؟<br>3- څوك د آشپز او کور کلمې په انګلیسي وائې؟<br>د دی د پار چې د زده کوونکو پام د نوي لوست زده کړې ته را واړوي لاندې پوښتنې ترې وکړئ.<br>- څرنګه کولای شو چې ښه لوست ووایو؟<br>- کوم ځایونه د ښې مطالعې کولو له پاره مناسب دی؟<br>- آیا تاسې پخپلو کورونو کې کتابتون لرئ؟<br>د کتاب د 25 مخ د letis read په لوړ غږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسو ته په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته هغوی ته لارښوونه وکړئ ترڅو متن د ځان سره په پټه خوله ولولي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا او تلفظ کولو کې یې ستونزې ولري کرښې وکاږي.<br>- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ تر څو متن په لوړ غږ سره ولولي او تاسې هم هغوي سره د کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ وروسته متن بیا ولولي او معنا ئی کړئ.<br>- زده کوونکې په دوه کسیزه ډلو وویشئ ترڅو Ask and answer د برخې پوښتنې د 25 مخ د |

| |
| --- |
| متن نه په ګتې اخستیلو سره ځواب ورکړي .<br>- د زده کوونکو څخه دوه کسییزه ډلو په توګه وغواړئ چې Ask and answer د برخې تمرین پخپلو منځو کې اجرا کړي. د مثال په توګه یو زده کوونکی پوښتنه وکړي او دویم زده کوونکی د متن له مخې ځواب ورکړي.<br>په هغه صورت کې چې دویم زده کوونکی په صحیح توګه ځواب ورنکړای شو د بل زده کوونکي نه وغواړئ چې صحیح ځواب ورکړي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د25 مخ د true.false جملې د متن نه په ګټې اخستیلو سره په نښه کړي ځو په لومړی سر کې د جملو د صحیح حل کولو طریقه هغوی ته وروښایاست<br>- د زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه جمله په لوړ غږ سره ولولي او ووایي چې آیا جمله صحیح وه اوکه نه؟ |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله د زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:<br>۱- ولی موږ د مطالعې کولو په وخت کې آرام ځای ته اړتیا لرو؟<br>۲- څوک ویلای شئ چې کتابتون د کومو کارونو له پاره استعمالیږي؟<br>۳- د scheduleکلمه په پښتو ویلای شي او معنا ئي کړی؟<br>۴- د نن‌ني لوست څخه موځه زده کړل؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نن‌ني لوست کې د لوستلو اصول او طریقی زده کړې. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښونه وکړئ ترڅو د Ask and answer د برخې پوښتنو ته پخپلو کتابچو کې ځواب ورکړي. |

**Uni four**
**Abilities**
**Lesson three**

**مخونه: ۲۷ – ۲۸**

**وخت:**یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- د Can. Who. Are. Is په کلمو سره پوښتنې وکړي او ځواب ورکړي.

۲- د Can. Who. Are. Isد کلمو په معنا پوه شي.

۳- د نویو کلمو په معنا باندې پوه او د ورځني ژوند په خبرواتر وکې ترې ګټه واخلې.

**نوي لغتونه:**painting cooking. Playing, swimming . cake. Baskedball. Draw

رسمول، باسکیتبال، کیک، لامبل، لوبی، کول، آشپزی کول، رنګ کول

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او دوه کسییزه

**د لوست مرستندویه توکي:**تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې د پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو مو پخپلو کورونو کې تیر لوست تکرار او زده کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

۱- د یوه ښه لوستونکي اصول او قواعد ویلای شي؟

۲- د quite اوlibraryکلمې په پښتو معنا کړي؟

۳- ولې مطالعه کول په آرامه فضا او ځای کې ښه وي؟

- د زده کوونکو پام اګر ځول و لوست او همدارنګه د نوي لوست په هکله د انګیزې پیدا کولو په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- د .Is she good at playing football? پوښتنې ته ځواب ووائي.

- د Can you makes cake? پوښتنې ته ځواب ووایي.

- د cake او spain د کلمو د پاره یوه یوه جمله ووائی؟

- د کتاب د ۲۷ مخ listen and practice د برخې جملې په لوړغږ ولولې او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسو ته په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته هغوي په دوه کسییزه ډلووویشي په تمرین چې یو د بل سره تمرین کاروکړي او دهغو کلمو تلفظ او معنا په هکله چې ستونزې لري د هغوي لاندې کرښې وکاږي.

- د زده کوونکو څخه په دوه کسییزه توګه وغواړئ ترڅو تمرین په لوړغږ سره ولولې د مثال په توګه یو زده کوونکې پوښتنه کوي او دویم زده کوونکی ورته ځواب ورکوي او لولي یې.

- د 28 مخ د lets learn some thing new د برخې جملې په لوړغږ ولولې او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي تر څو متوجه اوسي چې جملې د زده کوونکو د

| |
|---|
| فعالیت تر ختمولو پورې معنا نه کړي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو جملې د ځان سره په پټه خوله ووايي او د صحيح جملو لاندې کرښې او دايره وکاږي وروسته د هغوی نه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو دواړه جملې ووايي او د هغې جملې نه دايره تاوه کړئ چې صحيح وي اوبې وايي.<br>- دlets learn something new د برخې جملې په لوړغږ ووايي او ويې ژباړي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلو په هيله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>1- د volley ball او Swim د کلمو له پاره يوه يوه جمله جوړ کړئ؟<br>2- څوک دې پوښتنو ته ځواب ورکوي؟ Who can draw?<br>Can you play basketball?<br>3- د نننې لوست څخه موځه زده کړل؟<br>4- آيا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننې لوست کې د is, are, can, who د کلمو په واسطه د پوښتنو کول ولوستل؟ |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 27 مخ د listen and practice برخې جملې پخپلو کتابچو کې وليکي. |

**Unit four**
**Abilities**
**Lesson four**

**مخونه 29–30**

**وخت:**یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:**زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1- هغو پوښتنو ته چې په Can, does, where, when سره کېږي ځواب ووايي
2- محاوره او خبرې، اترې په صحيح توګه تمثیل کړي.
3- د نويو کلمو په معنا پوه او په ورځنيو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:**Pool, river, prefer, fresh

تازه، ترجیح ورکول، ډنډ، سیند

**اصطلاح ګانې:** What about you, See you tomorrow See you

ته څنګه ئي، سبا به د خيره ګورو، د راتلونکی لیدلو په هیله

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او دوه کسییزه

**د لوست مرستندویه توکي:**تخته او تباشير

**فعالیتونه:**

د زده کوونکو څخه د تیر لوست د زده کړی د یادولو په هیله لاندنې پوښتنې وکړئ.

1- لاندې پوښتنوته ځواب ویلی شي ?Who can paint
Are you good at painting?

2- د painting draw, cook کلمې په پښتو معنا کړی؟

د زده کوونکو پام راګوځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدلو په هیله لاندنې پوښتنې وکړئ.

- د لامبو سره بلد او پيژنی؟
- د ?Can Ahmad swim پوښتنې ته ځواب وايي؟
- په کوم ځای کې باید ولامبو؟

- د 29 مخ دdialogue د برخې محاوره په لوړغږ ولولي او زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې په ځير سره غوږ ونيسی وروسته هغوي په دوه کسییزه ډلو وويشي ترخو پخپلو منځو کې محاوره تمرين کړي او دهغو کلمو په معنا چې نه پوهيږي او یا يې په تلفظ کولو کې ستونزه ولري په نښه کړي.
- له څو ډلو وغواړئ ترڅو محاوره په لوړغږ ولولي هڅه وکړئ چې د ډلو ترکیب د ټولګي د مختلفو برخو څخه وي.
- محاوره یو ځل بیا ولولي او ويي ژباړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 30 مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې یو د بل

| |
|---|
| سره تمرین کړي وروسته له هغوی څخه په دوه کسییزه توګه وغواړئ ترڅو په تمرین کاروکړي د مثال په توګه لومړی زده کوونکې پوښتنه وکړي او دویم زده کوونکې د مخکښني مخ د محاورې نه په ګټې اخیستلو ځواب ورکړي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړی ترڅو د 30 مخ د Read and write د برخې نه په ګټې اخیستلو سره د 29 مخ د dialogue د برخې پواسطه ډګ کړئ. وروسته د هغوی نه په دوه کسییزه توګه وغواړئ ترڅو خپله بشپړه شوې محاوره په لوړغږ ولولي. په هغه صورت کې که یوه زده کوونکی یوه جمله غلطه ډکه کړي وي له بل زده کوونکي څخه وغواړئ ترڅو صحیح جمله ولولي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله د زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1- د ?Where do you like to swim پوښتنې ته ځواب ووایې؟<br>2- د river, pool کلمې په پښتو معنا کړئ؟<br>3- آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟<br>4- آیا See you tomorrow جملې ته د ځواب ورکولو په طرز پوهیږئ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننې لوست کې دلامبو وهلو په باره کې خبرې اترې زده کړې. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 30 مخ د Read and write د برخې محاوره پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

**Unit four**
**Abilities**
**Lesson five**

**مخ:** 31–32

**وخت:**يو درسي ساعت(45) دقيقې

**موخې:**دلوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:

1- د انګلیسي د کلمو او تورو د لیکلو په صحیح طریقه باندې پوه شي.

2- د څلور خطه کتابچو نه دګټې اخیستلو په طریقه به پوه شي.

**نوي لغتونه:** choose, pickup, slow down, hand writing, guide, pressure

فشار، رهنمائي، په لاس لیکل، قراریدل، پیک اپ، ټاکل

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړې او دوه کسیزه.

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

دتیرلوست ارزونې په هیله لاندنې پوښتنې وکړئ.

1- د?Where do you play volleyball پوښتنې ته ځواب وواییې؟

2- د cook, paint کلمې په پښتو معنا کولای شې؟

د زده کوونکو پام راګر ځول ټولګي ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله د نوي لوست په هکله لاندنې پوښتنې وکړئ.

- د انګلیسي د الفبا د غټوتورو لیکل د څلور لیکو کتابچو په کومو لیکو کې لیکل کیږي؟
- د کوچني الفبا توري په کومو لیکو کې لیکل کیږي؟
- آیا څوک پوهیږئ چې څه ډول په ښه توګه لیکلای شو؟

- د 21 مخ د writingد برخې جملې په لوړغږ ولولې او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو جملې په لوړغږ ولولي وروسته څو زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو جملې په لوړ غږ ولولي وروسته بیا جملې او ویې ژباړي.
- د الفبا توري په تختې باندې د څلور لیکو د پاسه ولیکې او عملاً د تورو لیکلو طریقه زده کوونکو ته وښایاست وروسته زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د خپلو کتابونو له مخې د الفبا توري پخپلو کتابچو کې ولیکي.
- زده کوونکو ته په ځانګړې توګه لارښوونه وکړئ ترڅو د ټولګي مخې ته راشي او یو توری ورته ووایاست چې په تخته یې ولیکي.

| |
|---|
| |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هيله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>1- د انګليسي غټ توری د څلور خطه په څو ليکو کې ليکل کيږي؟<br>2- چې د انګليسي کوچنی توري په کومو ليکو کې ليکل کيږي؟<br>3- له دی امله چې د انګليسي تورو د صحيح ليکلو طريقه مو ښه زده کړی څه احساس کوئ؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننې لوست کې د انګليسي تورو د صحيح ليکلو او همدرنګه ښه ليکلو طريقی زده کړی. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د انګليسي د تورو ليکل د مثال مطابق د کتاب له مخی پخپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit Five
## Healthy life style
### Lesson one

**مخ:** 34–35

**وخت:**یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:**دلوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:

1- محاوره ولولي او تمثیل یې کړي.

2- سمې او غلطې جملې وپیژني.

3- نابشپړې جملې بشپړې کړي

4- د نویو کلمو معنا درك او په ورځنیو خبرو اتروکې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:**headache, sore eyes, rest, office. Parents

سر درد، د سترګو ناروغي، استراحت کول، دفتر او مور

**اصطلاح ګانې:**

**د لوست د تدریس میتودونه:**ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:**تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې له پاره چې پوه شي زده کوونکو مو تیر لوست په کورونو کې تکرار کړی دی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.<br>1- د انګلسی غټ توری په کومو لیکو کې لیکل کیږي؟<br>2- د انګلسی کوچنی توری په کومو لیکو کې لیکل کیږي؟<br>3- څرنګه کولای شو خپلې دلاس لیکنې ښې کړو؟<br>همدارنګه د زده کوونکو پام راګرځول ته او د انګیزې پیدا کول نوي لوست په اړه لاندې پوښتنې ترې وکړئ<br>• د dog کلمه سپیل یاتوري ویلای شي.<br>• Are you ok? پوښتنې ته ځواب ووایې.<br>- د کتاب د 34 مخ د dialogue د برخې محاوره په لوړغږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته هغوي په دوه کسیزه ډلوویشئ ترڅو محاوره پخپلو منځو کې تمرین کړي او دهغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي او یایې په تلفظ کې ستونزې ولري پوښتنې وکړی او کرښې ترې لاندې و کاږئ.<br>- د زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ چې محاوره په لوړغږ ولولي تاسې هغو سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ او د ټولګې د مختلفو برخو د زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا کار سرته ورسوي وروسته له هغې څخه یو ځل بیا محاوره په لوړغږ ولولي او بیایې |

| |
|---|
| وژباړي.<br>- زده کوونکو ته وخت ورکړی چې د 35 مخ د lets practice برخې جملې د خپلو ځانونو سره به پټه خوله ولولي او د مخکېنی مخ د dialogue دبرخې نه په ګټه اخیستلو سره یې په نښه کړي چې صحح دي او که غلطی؛ وروسته له هغې د هغوي نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې یوه یوه جمله ولولي او ووایي چې جمله یې سمه وه که غلطه.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 35 مخ د missing lettersد برخې نابشپړې کلمې له ځانه سره ولولي او د مخکېني مخ د محاورې د برخې نه په ګټې اخیستلو سره یې بشپړې کړي وروسته له هغو څو تنو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو بشپړه کلمه په تخته ولیکي د غلطی په صورت کې بل زده کوونکې ته وخت ورکړی چې په صحیح توګه یې ولیکي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>1- د Are you ok?پوښتنې ته ځواب ووایي؟<br>2- د سر درد او دسترګو درد کلمې په انګلیسي ووایي؟<br>3- د ننني لوست نه موخه زده کړل؟<br>4- آیا نننی لوست درته په زړه پورې څرګند شو؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې په ټولګي کې محاوره د کلمو بشپړول او همدارنګه سمې او غلطې جملې و لوستلې. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 35 مخ د writingد برخې جملې په خپلو کوروکې منظم او پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

**Unit five**
**Healthy life style**
**Lesson two**

**مخ:** 36-37

**وخت:** یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکې به دلوست په پای کې وکولای شي چې:

1- روغتیایې ډوډۍ او خواړه وپیژني
2- متن ولولي او ویې ژباړي
3- مرضونه وپیژني او په انگلسی یې وویلای شي.
4- روغ ژوند په طریقو پوه شي

**نوي لغتونه:** Mom, bake, put, little, hungry, hurt, hot, burn, pain, active, fewer, junk, turn, off

مور، پخول، کیښودل، لږ، وږي، زخمی، گرم، اور واخستل، درد، فعال، لږ، پاتی شونی، چالانول

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانگړی او دوه کسییزه

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې له پاره چې پوه شي زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار او کورنۍ دنده یې سرته رسولی ده لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

1- دا جمله.i am not ok په پښتو و ژباړي؟
2- څوک په انگلیسي وایي زما سر درد کوي؟

د زده کوونکو پام راگرځول نوي لوست ته او د انگیزې د پیداکېدو په هیله لاندې پوښتنې وکړئ:

- ستاسی مور نن د سهار چای له پاره څه شي تیار کړی و؟
- څوک په انگلیسي ویلای شي چې زما سردرد کوي؟
- د دی له پاره چې روغ او سو څه باید وکړو؟
- آیا لوبې او ورزش د روغتیا له پاره گټور گڼل کیږي؟

- د کتاب د 36 مخ د Reading د برخې متن په لوړغږ ولولی او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي.
- زده کوونکو ته دنده ورکړئ ترڅو متن د ځان سره په پټه خو له ولولئ او هغه کلمې چې په معنا یې نه پوهیږي او یا یې په تلفظ کې ستونزې لري په نښه کړئ وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن په لوړغږ سره ولولي او تاسو د هغو سره د ستونزمنو کلمو په تلفظ کې مرسته ورسره وکړئ.
- متن یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د دوو دردونو په هکله چې په دې پنځو کلنو کې لیدلي

| |
|---|
| دي یو بل ته ووايي په لومړی سرکې تاسود یو څو ناروغیونومونه په تختې ولیکئ او په لوړغږيې وواياست او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې ترتاسې وروسته يې تکرار کړي.<br>(headache, fever, sorethroat, backache, toothache, running nose)<br>سردرد، تبه، د ستونی درد، د ملا درد، د غاښ درد، پزه لهیدل<br>- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې یو له هغو ناروغیو څخه چې تیرې کړي دي او جمله يې ورته لیکلي په لوړغږ ولولي او تاسې هم د هغوي سره د جملې په جوړولو کې مرسته وکړئ.<br>- د کتاب د 37 مخ د lets read عبارتونه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر سره غوږونیسي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو عبارتونه په لوړغږ ولولي. وروسته عبارتونه بیاولولي اوويې ژباړي.<br>- همدارنګه زده کوونکو ته شرح ورکړئ ترڅو دا پړاو او مرحله د خپل ژوند د ښه والي په هیله تل په یاد کې ولري او دروغ بدن د ساتلو په هیله يې تل پلی کړي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 37 مخ د practice د برخې جملې د ځان سره په پټه خوله  ولولي او هره جمله که سمه وي د T توري په لیکلو او که غلط وي د F د توري په لیکلو سره په نښه کړي وروسته له هغې د زده کوونکو نه په ځانګړې توګه وغواړئ چې یوه جمله ولولي او ووايي چې جمله سمه ده که غلطه؟ |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله د زده کوونکو څخه دا لاندنې پوښتنې وکړئ:<br>1- په انګلسی ویلای شي چې زما سترګې درد کوي؟<br>2- دا عبارت Turn off tv and get activeپه پښتو څه معنا لري؟<br>3- د نننې لوست څخه مو څه زده کړل په لنډ ډول يې بیان کړئ.<br>4- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننې لوست کې زده کړل چې څه ډول باید یو روغ بدن ولرو؟ |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه کړئ ترڅونا بشپړې کلمې د 37 مخ د let's write دبرخې تکمیل او پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit five
## Healthy life style
### Lesson three

**مخونه:**۳۹-۳8

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1 - د عذر کولو لیک به وپیژني.

2 - د یوه لیک په اجرا کولو پوهه شي.

3 - د عذر کولو لیک ولیکي او د ځان د پاره یې جوړه کړي.

4 - دنو یو کلمو په معنا به پوهه شي او په ورځنیو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** please, excuse, son, absent, suffer, advise, consideration

لطفاً، عفوه، ځوی، غیر حاضر، رنځ ورل، مشوره ورکول، توجه کول، په نظر کې نیول

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** د عذر لیک، تخته و تباشیر

**فعالیتونه:**

ډلې حاصلولو په هیله چې زده کوونکو کورنۍ دنده د lets write برخه سرته رسولې هغو وګورئ او وروسته له هغی لاندېنی پوښتنې ترې وکړئ:

1 - دیوه ښه او روغ ژوند کولو له پاره باید څه وکړو؟

2 - څوک د hot او cook کلمې په پښتو ژبه ویلای شي؟

د زده کوونکو د پام راګرځولو او د نوي لوست د زده کړی د انګیزې د پیدا اکولو له پاره لاندني پوښتنې ترې وکړئ.

- څه وخت چې تاسې ناروغه شي ښوونځي ته څه ډول خبرور کوئ؟
- یو لیک د کومو برخو څخه جوړ شوي دی؟

- د عذر کولو متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته له هغې د عذر کولو د لیک په ښودلو چې مخکې موجوړ کړی دی او یایې په تخته رسم موجود دی د لیک ټولې برخې زده کوونکو ته وروښایاست او تشریح یې کړی.
- د زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ ولولي د لوستلو په وخت کې که کوم زده کوونکي د تلفظ په برخه کې ستونزه ولري مرسته ورسره وکړی وروسته د لیک متن بیا په لوړغږ ولولي اوویې ژباړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د لیک متن پخپل نامه تبدیل کړي او پخپلو کتابچو کې یې ولیکې وروسته له هغې له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو هغه لیک یې چې لیکلی دی په لوړغږ ولولي.

| |
|---|
| |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>۱- څه وخت د یو عذر کولو لیک ته اړتیا پیدا کیږي؟<br>1 - Greeting د لیک کومې برخې ته ویل کیږي؟<br>2 - Signature د لیک کومې برخې ته ویل کیږي؟<br>3 - آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د عذر کولو د لیک طریقه ولوستله او پوه شوی چې له څلورو برخو څخه greeting, body, closing, signature جوړه شوی ده. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د کتاب د بېلګې څخه په ګټې اخیستلو د عذر کولو یو لیک پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit five
## Healthy style
### Lesson four

**مخونه:** ۴۰-۴۱

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکو به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1 - ناروغۍ وپېژني.
2 - د ناروغیو نومونه واخلي.
3 - د خپلې ناروغۍ وجه به په انگلیسي ژبه وویلای شي.
4 - د نویو کلمو په معنا پوهه شي او په ورځنیو خبرو اتروکې به د هغو څخه گټه واخلي.
5 - نوي کلمې به هیجا او یا سپیل کړي.

**نوي**

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانگړې او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دې له پاره چې ډاډ حاصل کړئ چې زده کوونکو مو تیر لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1 - یو لیک له کومو برخو څخه جوړ شوي دي؟
2 - آیا تر اوسه موکوم ضروري لیک ښوونځي ته لیکلی دی؟

د زده کوونکو د پام راگرځولو او نوي لوست د پاره انگیزې د پیدا کېدلو په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- د Are you ok? پوښتنې ته سم ځواب ویلای شي؟
- د سر درد او د سترگو د درد کلمې په انگلیسي ژبه ویلای شي؟
- آیا د headache کلمې له پاره یوه جمله ویلای شئ؟

- د ۴۰ مخ د listen and practice د برخې جملې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو هغوی یې له تاسې وروسته تکرار کړي اوښه غوږ ورته ونیسي.
- زده کوونکي په دوه کسیزه ډلووېشئ ترڅو جملې پخپلو منځو کې تکرار کړي او سوال او ځواب پرې وکړي.
- د ۴۰ مخ د listen and practice د برخې کلمې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو هغوی یې له تاسو څخه وروسته تکرار کړي. هڅه وکړئ چې د ناروغیو په پوهولوکې د تمثیل څخه گټه واخلي ترڅو زده کوونکي په ښه ډول پوه شي او زده یې کړي

| |
|---|
| وروسته زده کوونکي په دوه کسیزه ډلووویشئ ترځو د پورتینو انځورونو د مثالونو په څیر د هغوي په هکله پوښتنې وکړي او ځوابونه ورکړي د مثال په ډول یو زده کوونکې پوښتنه کوي What is the problem? اودویم زده کوونکي چې د ناروغۍ تمثیل کوي ځواب ورکوي I have a headache<br>- زده کوونکې په پنځه کسیزه ډلووویشئ ترځو دا ۴ مخ د speaking and writing د برخې فعالیتونه پخپل منځ کې تمرین کړي د هغو څخه وغواړئ ترځو د ورکړل شوي جدول په څیر یو یو جدول پخپلو کتابچو کې رسم کړي.<br>- له هر زده کوونکې څخه په ځانګړی توګه وغواړئ تر څو د speaking and writing د برخې انځورونو ته وګوري او یوه ناروغي تمثیل کړي او هر زده کوونکې رسم شوي جدول په کتابچو کې د کتاب د مثال سره سم د خپلو درې تنو هم ډلو سره بشپړ او تکمیل کړي.<br>- زده کوونکي په دوه کسیزه ډلووویشئ ترڅو پخپلو منځو کې د role play د برخې فعالیت تمرین کړي د مثال په توګه لومړی زده کوونکې د یوې ناروغۍ تمثیل کوي او دویم زده کوونکې ورته نظر ورکوي چې څه باید وکړی؟ |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>1 - دا جمله.I am earache په پښتو معنا کړئ؟<br>2 - کلمې Toothache, sore eyes, backache په پښتو معنا کړي.<br>3 - دا چې په انګلیسۍ مود ناروغیو نومونه زده کړل څه احساس کوئ؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې د ناروغیو نومونه ولوستل او د هرې یوې له پاره مو یوه جمله جوړه کړې ښوونکې. دې د نارغیو نومونه یو ځل بیا په لوړغږ ولولي او تمثیل یې کړي. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د هرې ناروغۍ له پاره یوه یوه جمله د کورنۍ د غړو په هکله جوړه او پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit five
## Healthy life style
### Lesson five

**مخونه42-43**

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- ناروغي وپیژني.

2- د ناروغیو نومونه به ووایي.

3- ناروغۍ په انګلیسي ژبه وویلای شي.

4- د نویو کلمو په معنا به پوه شي او په ورځنیو خبرواترو کې ترې ګټه واخلي.

5- نوي کلمې هیجا او یا سپیل کړي.

**نوي لغتونه:**

Running nose, cold, dentist

پزه بهیدل، ریزش، د غاښو ډاکتر

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دې له پاره چې ډاډ حاصل کړی زده کوونکو موتیر لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1- ووایي چې د What is your problem? پوښتنې ته ځواب ووایي؟

2- I am headache جملې ځواب ورکړي.

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې وکړئ.

- Are you ok? پوښتنې ته سم ځواب ووایي.
- په انګلسی ویلای شي زما ستونی خوږیږي.
- څوک د sore eyes کلمې سپیل کولای شي؟

- د 41 مخ د Listen and practice د برخې جملې په لوړغږ و لولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو په ځیر سره غوږ ونیسي او له تاسو وروسته جملې تکرار کړي.
- زده کوونکي په دوه کسیزه ډلوویشئ ترڅو جملې پخپلو کې پوښتنې وکړي او ځواب ورکړي د بیلګې په توګه لومړی زده کوونکې د لومړي چوکاټ څخه یوه جمله وایي او دویم زده کوونکي له دویم چوکاټ څخه ځواب ورکوي.
- د 42 مخ د pronunciation د برخې محاوره په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه

| |
|---|
| وغواړئ چې تاسې ته په ځير سره غوږ ونيسي وروسته زده کوونکو ته په دوه کسيزه توګه لارښوونه وکړئ ترڅو تمرين په پټه خوله د ځان سره کاروکړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې تمرين په لوړغږ کاروکړی او تاسې هم د هغوي سره د تلفظ په برخه کې مرسته وکړئ.<br>- د زده کوونکو نه په دوه کسييزه توګه وغواړئ چې د 42 مخ د Spelling د برخې تمرين لکه: په کتاب کې دورکړل شوي مثال په توګه کارو کړي.<br>- د 43 مخ د Read and choose د برخې جملې په لوړغږ ولولو اوله زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو په ځير سره غوږ ونيسی. پام وکړئ چې دا تمرين او فعاليت د زده کوونکو د فعاليت تر پای ته رسيدو پورې ونه ژباړي.<br>- د زده کوونکو څخه په ځانګړی توګه وغواړئ ترڅو انځورونو ته په ځير سره وګوري او جملې ولولي اوسمه جمله پکې وټاکي وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو يوه يوه جمله په لوړغږ سره ولولي او خپلې ټاکل شوي جملې ووايي په هغه صورت کې چې کوم زده کوونکې غلطې جملې په نښه کړې وي د بل زده کوونکې نه وغواړئ چې سمه جمله ووايي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هيله لاندې پوښتنې د زده کوونکو څخه وکړئ.<br>1- آيا کولای شي چې و I am earache جمله په پښتو معنا کړي؟<br>2- آيا دا جمله These are his eyes? په پښتو ژبه معنا کړی؟<br>3- څوک په انګليسي وايي چې زماسترګی درد کوي؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننې لوست کې د ناروغيو نومونه ولوستل او د هره يوه له پاره مو يوه جمله جوړه کړه.<br>ګرانه ښوونکيه! د ناروغيو نومونه يو ځل بيا په لوړغږ ولولئ او تمثيل يې کړئ. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 43 مخ دRead and choose د برخې جملې پخپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit Six
## Lovely Kabul
## Lesson one

**مخونه:**45-46

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- ډیالوګ ولولي

2- کابل وپیژني.

3- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبر واترو کې ترې ګټه واخلي.

4- نوې کلمې په ښه توګه تلفظ کړي.

**نوي لغتونه:**

Old, city, big, clean, famous, building, mosque, shopping, malls, palace, national, special

زوړ، ښار، غټ، پاک، مشهور، تعمیر، جومات، پیرودل، مارکیټ، ماڼۍ، لوی، ملی

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دې له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو مو تیر لوست په کور کې تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1- د What is your problem? پوښتنې ته ځواب ووایي؟

2- د I am sore throat. ځواب ورکړي.

د دې له پاره چې د نوي لوست له پاره د زده کوونکو پام راوګرځوی او د نوي لوست له پاره انګیزه پیداکړئ لاندې پوښتنې وکړئ.

- آیا په ټول کابل کې بلد یاست؟
- موزیم څه ډول ځای دی؟
- خپل ولایت معرفي کولای شي؟

- د 45 مخ ډیالوګ په لوړغږ ولولئ اوله زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته زده کوونکي په دوه کسییزه ډلو وویشئ ترڅو ډیالوګ پخپلو منځو کې تمرین کړي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا او تلفظ یې نه پوهیږي کرښې وکاږي.
- د ټولګي په مختلفو موقعیتونو کې په دوه کسییزه توګه د زده کوونکو نه وغواړئ ترڅو ډیالوګ په لوړغږ تمثیل کړي او وروسته له هغې تاسې ډیالوګ په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 46 د Fill in the blanks جملې له ځان سره په پټه خو له ولولي او تش ځایونه د ډیالوګ نه په ګټې اخیستلو سره ډک کړي وروسته له زده کوونکو څخه

| |
|---|
| په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو يوه يوه جمله په لوړغږ ولولي په هغه صورت کې چې جمله غلطه ډکه شوي وه د بل زده کوونکې څخه وغواړئ چې د نو موړې جملې ځای چې په صحيح توګه ډکه کړی وي ولولي.<br>- د 46 مخ د Read and write د برخې A په لوړغږ ولولئ اوله زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسې ته په ځير سره غوږ ونيسي وروسته له هغې نه زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د A کارت د ځانه سره ولولي او د B کارت د خپل ولايت په هکله تکميل او ډک کړي وروسته له هغوي څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو د خپل ولايت په هکله تکميل شوي کارت په لوړغږ ولولي او تاسې د هغو سره د کارت په بشپړيدو او تلفظ کولو کې مرسته وکړئ. |
| **ارزونه:**<br>دخپل ډاډ د حاصلولو په هيله لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>1- د It is a big and clean city جمله په پښتو ژبه معنا کړي؟<br>2- museum او famous کلمې په پښتو ژبه معنا کړی؟<br>3- له دی امله چې د کابل په هکله ډير پوه شوی څه احساس کوي؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د کابل په هکله ډيالوګ ولوست. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د B کارت يو ځل بيا پخپلو کتابچو کې وليکي او دخپل ولايت په هکله يې بشپړ کړي. |

## Unit six
## Lovely Kabul
## Lesson two

**مخونه:47-48**

**وخت:** يو درسي ساعت(45 دقيقې)

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- کابل وپيژني او د هغې په باره کې خبرې وکولای شي.

2- د لنډو شويو کلمو شکل لکه can’t, I’ll, she’s , he’s, don’t وپيژني او په ورځنيو خبرو کې به ترې ګټه واخلي.

3- د نويو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنيو خبر واترو کې به ترې ګټه واخلي.

4- نوې کلمې په سمه توګه تلفظ کړي.

**نوي لغتونه:**Islamic, republic, largest, east, population, ministries

اسلامی، جمهوری، لوی، ختيځ، نفوس، وزارتونه

**د لوست د تدريس ميتودونه:** ځانګړی او ډله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:** د دی له پاره چې ډاډ حاصل کړئ چې زده کوونکو مو تير لوست زده کړی او تکرار کړی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1- څوک ويلای شي چې کابل د کوم هېواد پلازمينه ده؟

2- څوک کولای شي چې د ?What is Kabul famous for ته ځواب ووايي؟

د زده کوونکو پام راګر ځول نوي لوست ته او د انګيزې د پيدا کېدو په هيله لاندې پوښتنې وکړئ

- آيا کابل د افغانستان پلازمينه ده؟
- څوک ويلای شي چې په موزيم کې کوم شيان ساتل کېږي؟
- څوک د museum او mosque کلمې په پښتو ژبه معنا کولای شي؟

- د کتاب د 47 مخ د let’s read د برخې په لوړغږ ولولی او زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو تاسې ته په ځير سره غوږ ونيسي. وروسته له هغوی څخه وغواړئ چې متن د ځان سره په پټه خو له ولولي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا يې نه پوهيږي او يا يې په تلفظ کې ستونزې ولري کرښې وکاږي.
- د زده کوونکو څخه په ځانګړی توګه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ ولولي او تا سې د هغوي سره کومې کلمې چې سختې وي د تلفظ په کولو کې مرسته وکړئ وروسته له هغې نه متن په لوړغږ ولولي اوويې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 47 مخ د let’s write د برخې جملې د خپل ځان سره په پټه خو له ولولي او د هغو تش ځايونه دور کړل شوو مناسبو کلمو سره ډک کړئ. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې يوه يوه جمله په لوړغږ ولولي په هغه صورت کې چې جمله غلطه

| |
|---|
| ډکه شوي وي د بل زده کوونکي نه وغواړۍ چې جمله یو ځل بیا په سمه توګه ولولي.<br>- زده کوونکې په دوه کسییزه ډلو وویشئ او دنده ورکړئ تر څو د practice د برخې فعالیتونه پخپلو کې تمرین کړي خو د هغې مخکې تاسې جملې یو وار په لوړغږ ولولئ.<br>- د لنډو شویو کلمو شکلونه لکه can’t, I’ll, he’s, she’s, don’t په تخته باندې ولیکئ او د مثال په لیکلو سره زده کوونکي وپوهوئ چې په څه ډول دپورتنیو کلمو لنډ شکل لیکل کیږي او تلفظ کیږي؟<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو جملې د ځانه سره په پټه خو له ولولي او د جملو تش ځایونه ډک کړي. وروسته له دې نه د هغو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو جملې ولولي. په هغه صورت کې چې جمله غلطه ډکه شوي وي د بل زده کوونکې نه وغواړئ ترڅو جمله ولولي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلو له په هیله د زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ:<br>1- د he is او she is لنډیز ویلای شي؟<br>2- کابل د کوم هېواد پایتخت دی؟<br>3- د Are there any libraries? پوښتنې ته ځواب ویلای شي؟<br>4- آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې نن ورځ د لاندنیو لنډو شویو کلمو شکلونه لکه he’s, she’s, don’t, can’t, I’ll ولوستلې او همدارنګه مو د Is there اوAre there په کلمو سره پوښتنې وکړې او ځوابونه مو ورکړل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 48 مخ د Read and write دبرخې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکې. |

# Unit six
# Lovely Kabul
## Lesson three

**مخونه:** ۴۹-50

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې

**موخې:** د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې:

۱- د نویو کلمو په معنا پوه شي.

۲- نوې کلمې په ورځنیو خبر واترو او جملو کې استعمال کړي.

۳- نوې کلمې هیجا او یاسپیل کړي.

۴- نوې کلمې د انځورونو لاندې ونښلوي او ربط به ورکړي.

**نوي لغتونه:** shrine, airport, stadium, restaurant, transport

زیارت، هوایی میدان، سټودیم، رستورانت، ترانسپورت

**د لوست دتدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندوي توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دې له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو مو تیر لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

۱- د I will اوcan not لنډ شوي شکلونه په تخته لیکلی شي؟

۲- د .?Are there any restaurantپوښتنې ته ځواب ووایي؟

۳- د دی د پاره چې د زده کوونکو پام نوي لوست ته راوګر ځوو او انګیزه پیدا کړو لاندې پوښتنې د زده کوونکو څخه وکړئ.

- په موزیم کې کوم شیان په عمومي توګه ساتل کیږي؟
- الوتکه د کوم ځای څخه الوزي؟
- د ټرانسپورټ کلمه کومو واسطوته ویل کیږي؟

- د ۴۹ مخ د let's learn something new برخه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکوڅخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږونیسي وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو کلمې په لوړغږ ولولي او بیا وروسته کلمې په لوړغږ ولولي او زده کوونکي د هغوی په ژباړه کې له ځان سره شریک کړئ.
- زده کوونکې په دوه کسیزه ډلوووېشئ ترڅو د let's spell د برخې فعالیت پخپلو منځوکې تمرین کړي د بیلګې په توګه لومړی زده کوونکې پوښتنه کوي How do you spell zoo? دویم زده کوونکې کلمه سپیل کوي z-o-o لومړی هغوی ته وخت ورکړی چې

| |
|---|
| ترخو دا فعالیت دخپل نږدې ملګري سره تمرین کړي او وروسته له هغې څخه دا فعالیت د ټولګي د مختلفو موقعیتونو د زده کوونکو پواسطه سرته ورسوئ.<br>- زده کوونکو ته وخت ورکړئ اولارښوونه ورته وکړئ ترڅو د کتاب د ۵۰ مخ د look and match برخې کلمې د ځان سره په پټه خو له ولولي او هره یوه کلمه یې داړوند انځور سره وصل او ربط ورکړی.<br>- د زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو یوه یوه کلمه ولولي او انځوریې وښایې وروسته له هغې له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو کلمې په لوړغږ سره ولولي. |
| **ارزونه:**<br>د زده کوونکو څخه د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندې پوښتنې ترې وکړئ.<br>1 - د transport او shrine کلمې په پښتو معنا کولای شي؟<br>2 - ژوبڼ او هوایي ډګر کلمې په انګلسی ژبه ویلای شي؟<br>3 - د stadium او palace کلمې سپیل کړی؟<br>4 - آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې نوې کلمې ولوستلې او هغه مو سپیل او هیجا کړې. ګران ښوونکې دی نوې کلمې یو ځل بیا په لوړغږ ولولي او بیایې هیجا یاسپیل کړی. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د ۵۰ مخ د look and match د برخې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit six
# Lovely Kabul
## Lesson four and five

**مخونه:** 52–51

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې

**موخې:** د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولا شي چې:

1 - نقشه به وپیژني.

2 - د ځایونو او موقعیتونو په هکله به پوښتنې وکړي او ځوابونه ورکړای شي.

3 - څلور خواوې به وپیژني.

4 - د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځینو خبر واتروکې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** north, south, east, west

شمال، جنوب، شرق، غرب

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو موتیر لوست تکرار او زده کړی دی. لاندې پوښتنې ترې وکړی.

1 - د airport او library کلمې په پښتو ژبه معنا کوي؟

2 - د ?Are there any restaurants پوښتنې ته ځواب ووایې؟

د زده کوونکو پام راګرځولو او د انګیزې د پیدا کېدو له پاره لاندې پوښتنې وکړئ.

- د نقشې څخه د کوم کار له پاره ګټه اخلو؟
- ځوک ویلای شي چې الوتکه د کوم ځای څخه الوتنه کوي؟
- د څلورو خوا و نومو نه په انګلیسي ژبه څوک ویلای شي؟

- ټولګي ته دیوې نقشې په را وړلو سره، زده کوونکي د نقشې سره بلد کړي او څلور خواوې ورته په عملي توګه وروښایاست وروسته له هغې نه زده کوونکي په دوه کسیزه ډلووویشي ترڅو د ۵۱ مخ د .Look ask and answer د برخې فعالیت یو د بل سره کارو کړي. د بېلګې په توګه لومړی زده کوونکې دې پوښتنه وکړی او دویم زده کوونکې دی ځواب ورکړي. لومړی پرېږدی چې دا فعالیت د خپل نږدې ملګری سره کارو کړی وروسته په ټولګي کې د مختلفو ځایونو نو له زده کوونکو څخه و غواړئ چې لوموړی فعالیت په لوړغږ سره کارو کړي.
- د زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې پخپلو کتابچو کې یوه پوښتنه وکړي او

| |
|---|
| هغې ته ځواب ورکړي وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ هغه سوالونه او ځوابونه يې چې ليکلی دي په لوړغږ سره ولولي او تاسې د هغو سره د جملو په جوړولو کې مرسته وکړئ.<br>- د کتاب د ۵۲ مخ د spelling د برخې محاوره په لوړغږ ولولی اوله زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسې ته په ځير غوږونيسي وروسته له هغوی څخه په دوه کسيزه توګه وغواړئ چې محاوره د خپل نږدی ملګری سره تمرين کړی.<br>- د ټولګي د مختلفو برخود زده کوونکو څخه وغواړئ چېپه دوه کسيزه توګه محاروه په لوړغږ ولولي او تاسې د هغو سره دسختو کلمو په تلفظ کولو کې مرسته وکړئ. وروسته محاوره دويم ځل له پاره ولولئ اوويې ژباړئ.<br>- د ۵۲ مخ د Look and name د انځورونو د برخې نومونه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تا له تاسې څخه يې وروسته تکرار کړي وروسته له هغې د څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو د انځورونو نومونه په لوړغږ ولولي.<br>- د زده کوونکو څخه وغواړئ چې ترڅو په ځانګړي توګه د ۵۲ مخ د Let’s write د برخې ديوي معنا لرونکې کلمې سره پخپلو کتابچو کې تنظيم کړي لومړی تاسې په عملی توګه يو مثال زده کوونکو سره کاروکړئ وروسته له هغوي څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو د تختې مخې ته راشي او يوه يوه کلمه وليکې او د غلطی په وخت کې اجازه ورکړئ چې بل زده کوونکې دا کار سرته ورسوي.<br>Lets write<br>Example: valley<br>1 earth 2 mosque 3 minaret 4 Bamyan 5 shrine 6 buddah. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلو په هيله لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>1 - څوک د transport او shrine کلمی په پښتو ژبه معنا کړئ؟<br>2 - څوک د ژوبڼ او هوايي ډګر کلمې په انګليسي ژبه وايي؟<br>3 - څوک د stadium او palace کلمې هيجا او سپيل کړئ؟<br>4 - آيا نننی لوست درته په زړه پوري و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننې لوست کې نوي کلمې ولوستلې او هيجا ياسپيل موکړې( ګران ښوونکيه نوي کلمې يو ځل بيا په لوړغږ ولولئ او بيايې هيجا ياسپيل کړئ) |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د ۵۲ مخ د spellingد برخې جملې پخپلو کتابچو کې وليکې. |

# Unit Seven
## My birth place
### Lesson one

وخت: یو درسي ساعت(45) دقیقې

**مخونه:** 54-55

**موخې:**

زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولا شي چې:

1 - محاوره ولولي او تمثیل یې کړي.

2 - د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځنیو خبر واتروکي ترې ګټه واخلي.

3 - خپل کلی به وپیژني او د هغې په هکله به خبرې وکړي.

4 - صحیح او غلطې جملې وپیژني او تشخیص یې کړي.

**نوي لغتونه:** born, village

پیدا شوی، کلی

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو موتیر لوست تکرار کړی دی دا لاندې پوښتنې وکړئ.

1 - د airport او library کلمې معنا کړی.

2 - د palace او mosque کلمې هیجا یاسپیل کولای شي؟

د زده کوونکو د پام راګرځولو او د نوي لوست په هکله د انګیزې پیدا کولو له پاره لاندې پوښتنې وکړئ.

- خوک پوهیږئ چې په کوم ولایت کې پیدا شوي دی؟
- تاسو د کوم ولایت یاست؟
- ستاسې په ولایت کې خلک په کومو کارونو بوخت دي؟

- د ډ یالوګ د برخې محاوره په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې ستاسې تلفظ ته په خیر سره غوږ ونیسي وروسته هغوی په دوه کسییزه ډلو سره دویشلو لاربښوونه وکړئ ترڅو ډیالوګ پخپلو منځو کې په کراره ولولي اوکار وکړي وروسته په ټولګي کې د مختلفو ځایونو څخه زده کوونکې و هڅوي ترڅو ډیالوګ په لوړغږ سره تمثیل کړي.
- یو ځل بیا ډیالوګ په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په

| |
|---|
| ځير سره د هغو کلمو او لغاتونو په معنا او يا تلفظ کې يې چې ستونزې ولري پام او پاملرنه وکړي.<br>- زده کوونکو ته په دوه کسيزه توګه لارښوونه وکړئ ترڅو د Ask and answer د برخې جملې پخپلو کې تمرين کړي د بيلګې په توګه لومړی زده کوونکې پوښتنه لولي او دويم زده کوونکې د ډيالوګ نه دګتې اخيستلو پواسطه ځواب ورکوي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو ډيالوګ يو ځل بيا په پټه خو له ولولي او د true او false د برخې جملې ډکې کړي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ حاصلو په هيله د زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1 - د village او born کلمې په پښتو ژبه معنا کړی ؟<br>2 - د ?Where are you from پوښتنې ته ځواب ور کړی .<br>3 - د ?How is the weather پوښتنې ته صحيح ځواب ووايي<br>4 - آيا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې نن ورځ د يو ولايت په هکله خبرې اترې وکړې. |
| **کورنۍ دنده:**<br>د true, false د برخې جملې پخپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit seven
## My birth place
### Lesson two

**مخونه:** 56-57

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولا شي چې:

1- متن ولوستلی شي.
2- دچاریکار ښار به وپیژني
3- کېسی یا معما وپیژني او حل یې کړي.
4- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبر واتروکې ترې گټه واخلي.

**نوي لغتونه:** cinema agriculture, field, form

سینما، کرهنه، ساحه، زراعتی ځای

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانگړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ چې زده کوونکو مو تیرلوست تکرار

کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

1- د mountain او weather کلمې معنا کړی.
2- د people او book کلمې هیجا او سپیل کړي؟

د زد کوونکو پام راگرځول نوي لوست ته او د انگیزې د پیدا کېدو له پاره دا لاندې پوښتنې وکړئ:

- آیا تر اوسه پورې مو پروان ولایت ته سفر کړی دی؟
- ستاسې په ولایت کې خلك په کومو کارونو مصروف دي؟

- د ۵۶ مخ د let's read د متن برخه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو په ځیر سره غوږونیسي وروسته زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو متن د ځانونو سره په پټه خو له ولولي او د هغو کلمو او لغتو لاندې کرښې وکاږئ چې په معنا او یا تلفظ کولو کې یې ستونزې ولري.

- د زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې متن په لوړغږ ولولي او تاسې د هغو سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ وروسته له هغې نه یوځل بیا متن په لوړغږ ولولی اوویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د ۵۶ مخ د lets write د برخې متن د ځانونو سره په پټه خو له ولولي او د هغې تش ځایونه دوړ کړل شویو کلمو په ذریعه ډک کړي او د پنسل نه ګټه واخلي. وروسته د هغوي نه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه جمله په لوړغږ ولولي په هغه صورت کې چې زده کوونکي جمله غلطه ډکه کړي وه، اجازه ورکړئ چې بل زده کوونکی نوموړې جمله په صحیح توګه ووایي.

د lets write د تمرین حل:

Charikar is the center of parwan

1- It is located in the north
2- Residents are mostly tajiks
3- Its people are busy with agriculture
4- The products are vegetables and fruits

- زده کوونکي په دوي کسیزه ډلوویشئ او لارښوونه ورته کړئ ترڅو به چوکاټ کې ورکړل شوې کلمې چې د crossword د برخې د تورو په جدول کې ورکړل شوې پیدا کړي خو لومړی یو ورکړی شوي مثال په عملي توګه زده کوونکو ته وښایاست ترڅو هغوي پوه شي چې څنګه کلمې په جدول کې پیدا کړي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځانګړي توګه پیدا شوې کلمې په لوړغږ ولولي او نورو زده کوونکو ته یې وروښایې

**(د معما جدول بڼه)**

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| f | i | e | l | d | c | v | j | q | w | x |
| r | f | a | r | m | o | b | d | w | n | v |
| i | g | y | k | v | f | f | s | e | m | k |
| u | k | t | g | x | f | p | u | a | y | v |
| t | o | j | l | t | i | z | i | t | h | i |
| a | w | r | y | h | c | a | r | h | t | l |
| d | q | s | n | k | e | e | k | e | k | l |
| h | g | f | r | e | s | h | u | r | d | a |
| c | e | n | i | m | a | q | w | e | e | g |
| a | g | r | i | c | u | l | t | u | r | e |

**ارزونه:**

د خپل ډاډ د حاصلولو په هيله د زده کوونکو څخه لاندني پوښتني وکړئ:

۱ د village او Weather کلمې په پښتو معنا کړی.

۲ د ?Where are you from پوښتني ته ښه ځواب ورکړی.

۳ د ?How is the weather پوښتني ته سم ځواب ووايي؟

۴ آيا ننني لوست درته په زړه پوري و؟

**د لوست لنډيز:**

تاسې په ننني لوست کي د چاريکار ښاروپيژانده.

**کورنی دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د ۵۶ مخ د .let's read د برخې متن پخپلو کتابچو کي وليکي.

# Unit seven
# My birth place
## Lesson three

**مخونه:**58-59

**وخت:** یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- د خپل کلي او یا ولایت په هکله څه ولیکي.
2- د ښار او کلي ترمنځ په تو پیرونو وپوهیږي.
3- د ښار او کلي په هکله پوښتنې وکړي او ځوابونه ورکړي.
4- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبرواتروکې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** many, street, large, vehicle, factories, Plant, foundation, pollution, muddy, requirement, cottage, industries, air

ډیر، کوڅه، لویه، عراده، فابریکه، بنیاد، ناپاکی، ختین، اړوند شان، کور،

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکی:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو مو تیرلوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1- آیا په انګلیسي ویلای شي چې کابل د افغانستان پایتخت دی؟
2- د weatherاو fruit کلمې په پښتو ژبه معنا کړی.

د زده کوونکو د پام راګرځولو او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.

- د ښار او کلي توپیرونه ویلای شي؟
- آیا ستاسو په ولایت کې د لیدلو وړځایونه ډیر دي؟
- ستاسې په ولایت کې خلك په کومو کارونو ډیر بوخت دي؟

- د Which one do you like? د برخې جملې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو په ځیر سره غوږ ونیسي د هغې وروسته زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې جملې د ځان سره په پټه خوله ولولي.
- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو جملې په لوړغږ سره ولولي وروسته له هغی بیا تاسې جملې په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ.

وروسته له زده کوونکو څخه پوښتنه وکړئ چې کوم ډول ژوند کول یې خوښ دی؟ او ولې؟ هڅه وکړئ د ځواب ورکولو په وخت کې د جملو په جوړولو کې ور سره مرسته وکړئ.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ښاري او کلیو الي ژوند د توپیرونو په هکله خپل معلومات په کتابچو کې ولیکي او ووایي چې آیا د کلیوالي ژوند کې د ښاري ژوند نه ښه والی

| |
|---|
| شته؟<br>- له زده کوونکو وغواړئ چې په ځانګړي توګه هغه جملې چې يې ليکلي دي په لوړغږ سره ولولي په هغه صورت کې چې زده کوونکي و نه شي کولای خپل هدف او منظور په انګليسي ووايي هغه څخه بله پوښتنه وکړئ چې ورباندې و پوهيږي او هغوي ته يې په انګليسي وژباړي.<br>- زده کوونکې په دوه کسيزه ډلو وويشئ او د هغوی څخه وغواړئ ترڅو د role play د برخې فعاليت پخپلو کې کاروکړي خو لومړی تاسې ورته فعاليت تشريح کړئ.<br>- د ۵۹ مخ د spelling د برخې محاوره به لوړغږ ولولئ او د هغو څخه وغواړئ ترڅو تاسې ته په ځير سره غوږ ونيسي وروسته د هغې نه هغوی په دوه کسيزه ډلو وويشئ ترڅو محاوره پخپلو منځو کې تمرين کړی وروسته د ټولګي د مختلفو برخو څخه دوه کسيزه ډلې وټاکې او د هغو څخه وغواړئ چې محاوره په لوړغږ ولولي او تاسې د هغو سره دسختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هيله د زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1- د ?Can you help me please پوښتنې ته ځواب ووايي؟<br>2- د ?Where are you from پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>3- د ?How is the weather in your city پوښتنې ته سم ځواب کړی.<br>4- آيا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنديز:**<br>تاسې په نننی لوست کې د يو ولايت په هکله خبرې اترې ولوستلې. |
| **کوني دنده:**<br>د true, false جملې دې په کتابچو کې وليکي. |

**Unit seven**
**My birth place**
**Lesson four**

**مخونه:60-61**

**وخت:** يو درسي ساعت(45) دقيقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- د نويو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنو خبرو اتروکې ترې ګټه واخلي.

2- بی ترتيبه کلمې په يوې جوړې شوې يا معنا لرونکې کلمو باندې جوړې کړي.

3- نوې کلمې په جملو کې استعمال کړي.

**نوي لغتونه:**Tree, flower, mountain, field, plow river, cattle, tractor

ونه، ګل، غر، ساحه، قلبه،سيند، دمه، ترکتور

**د لوست د تدريس ميتودونه:** څانګړی

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو مو د تيرې ورځې لوست تکرار کړی دا لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1- د ?What is your village famous forپوښتنې ته ځواب ووايي.

2- د ښاري او کليوالي ژوند ترمنځ توپيرونه ويلای شي؟

د زده کوونکو د پام راګرځونې او د انګيزې د پيدا کېدو په هيله لاندې پوښتنې وکړئ.

- موږ د تراکتورنه د کومو کارونو د سرته رسولو له پاره ګټه اخلو؟
- په خپله حويلې- يا انګړ کې څو ډوله ګلان لرئ؟
- آيا کولای شې د Tree کلمې له پاره يوه جمله جوړه کړئ.

- د 60 مخ د Learn something new برخه په لوړغږ ولولئ له زده کوونکو څخه وغواړئ تاسې ته په ځير سره غوږونيسي او له تاسې وروسته وروسته کلمې په لوړغږ ولولي اوتکراريې کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو کلمې په څانګړې توګه په لوړغږ ولولي.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ ترڅو د 60 مخ Fun with words کلمې چې توري يې په ترتيب نه دی په ترتيب شوو او معنا لرونکو کلمو واړوي او بيادی پخپلو کتابچو کې وليکي.
- د زده کوونکو نه په څانګړې توګه وغواړئ ترڅو يوه يوه کلمه په لوړغږ سره ولولي او سپيل يا هيجاېې کړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې په څانګړې توګه د ټولګي مخې ته راشي او يوه جوړه شوې کلمه په تخته وليکي په هغه صورت کې چې يو زده کوونکي غلطي کوي دويم زده کوونکي ته وخت ورکړي چې د کلمې درست او صحيح ترتيب وليکي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 61 مخ د Let's write برخې انځوروته په ځير سره

| |
|---|
| وګوري او د هغوي په باره کې یوه یوه جمله پخپلو کتابچو کې ولیکي. وروسته له هغې له څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو دانځورونو په هکله یې چې جملې لیکلی دي په لوړغږ سره یوه یوه جمله ولولي او تاسې ورسره د جملو په جوړولو او تلفظ کولو کې مرسته وکړئ. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله د زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1- د cattle او river کلمې معنا کړي.<br>2- غر او ګل ته په انګلسی ژبه کې څه وایي؟<br>3- د field کلمه څوک سپیل یا هیجا کولای شي؟<br>4- څوک د tractor کلمی ته یوه جمله جوړوي؟<br>5- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې په tree, flower, cattle, tractor, mountain, field, flow, river, کلمې ولوستلې. |
| **کورنی دنده:**<br>د learn something newlet's برخې کلمو له پاره یوه یوه جمله جوړه کړي او په خپلو کتابچو کې ئې ولیکي. |

# Unit seven
## My birth place
### Lesson five

**مخونه:62-63**

**وخت:** یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- متن به په سمه توګه ولولي

2- د متن مفهوم به درک کړي.

3- د نویو کلمو په معنا پوهه شي او په ورځنیو خبرواترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** plentiful, spring, crops, grow, water, hole, cloth, chore, dig up, buried, mill, activity

مکمل، پسرلی، دانې، شنه کیدل، اوبه، سوری، ټوټه، ورځنی عادی کارونه، کیندل، خښول، ژرنده، فعالیت

**د نوي لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړی چې زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1- د flower, field کلمو ته یوه یوه جمله جوړ کړی.

2- د tractor, cattle کلمې هیجا او سپیل کړی.

د زده کوونکو د پام راګرځولو او د انګیزې د پیدا کیدو په هیله لاندې پوښتنې د زده کوونکو څخه وکړئ:

- ستاسې په کلي کې یوه کرنیزه ځمکه په څه ډول وي؟
- تاسې پخپل کور کې کوم کارونه سرته رسوئ؟

- د 62 مخ د It's time to read په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره د جملو او د کلمو جوړښت او تلفظ د کلمو ته پاملرنه وکړي وروسته له هغې له زده کوونکو څخه وغواړئ ترځو متن په پټه خو له د ځانه سره ولولي او د هغو کلمو چې په معنا او تلفظ کې یې ستونزې ولري کرښې وکاږي.

له څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترځو متن په لوړغږ ولولي او تاسې د هغو سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ وروسته متن یو ځل بیا په لوړغږ ولولي اوویې ژباړئ.

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترخو د 63 مخ د exercise د برخې جملې د ځان سره په پټه خوله ولولي اوتش ځایونه یې دور کړل شویو کلمو نه د پنسل په ذریعه ډک او بشپړې کړي.
- د زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترخو یوه یوه جمله په لوړغږ ولولي په هغه صورت کې چې نوموړي زده کوونکي جمله غلطه ډکه کړې وي بل زده کوونکي ته وخت

ورکړی چې صحیح جمله ولولي.

- له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه جمله په لوړغږ ولولي اوویې ژباړي تاسې د هغو سره د جملو په جوړولو کې مرسته وکړئ.

د exercise د تمرین حل:

1. It seems to have a plentiful spring.
2. Our crops are growing very well.
3. We are going to build a house .
4. We are going to dig a water well.
5. We didn’t work on Friday.
6. My first chore in the morning is making the break fast.
7. We dig up some of the vegetables.
8. My mother came from the mill.
9. At night we talk about our daily activities.

10We should work hard in the form.

**ارزونه:**

د خپل ډاډ د حاصلو په هیله د زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړی:

1- د It seems to have a plant جمله معنا کړي؟

2- د chore او mill کلمی څه معنا ورکوي؟

3- د vegetable کلیمه څوک هیجا او یا سپیل کولای شي؟

4- څوک د مور mother د کلمې له پاره یوه جمله جوړو لای شي؟

5- نننی لوست درته په زړه پورې و؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نننی لوست کې یو متن د Life in the farm په هکله ولوست.

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 63 مخ د exercise د برخې جملې یو وار پخبلو کتابچو کې ولیکي

# Unit Eight
## My hobbies
### Lesson one

**مخونه:**65-66

**وخت:** يو درسي ساعت(45) دقيقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- محاوره ولولي

2- د خپلې خوښې او ساعت تیر یو کارونو په هکله پیژند ګلوي ولري او هغه بیان کړي.

3- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبرواتروکې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:**hobby, embroidery, sort

سرګرمی، خامک دوزی، ډله بندی

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:** |
| ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ. |
| 1- د ?What is your chore at home پوښتنې ته ځواب وايي؟ |
| 2- د daily, plentiful, vegetables کلمې څه معنا لري؟ |
| د دی له پاره د زده کوونکو پام نوي لوست ته راوګرځوی او انګیزه پیدا کړی لاندې پوښتنې ترې وکړئ. |
| - د کومو کارونو سره ډیره مینه لری؟ |
| - د وزګارتیا په وخت مو کوم کارونه خوښیږي؟ |
| - د ?Do you like reading پوښتنې ته ځواب ووایي |
| - د 65 مخ د dialogue د برخې محاوره په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ ترڅو د کلمو تلفظ ته په ښه توګه غوږ ونیسی. |
| - زده کوونکي په دوه کسیزه ډلووویشئ ترڅو ډیالوګ د خپل نږدې ملګري سره په کراره تمرین کړي. |
| - د ټولګي د مختلفو ځایونو د زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو محاوره په لوړغږ تمرین کړي وروسته له هغې محاوره یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړی. |
| - زده کوونکې په دوه کسیزه ډلوویشی ترڅو د Ask and answer د برخې فعالیتونه د ځانو سره په کراره تمرین کړي خو لومړی ورکړل شوې پوښتنې یو له زده کوونکو سره په عملي توګه کارو کړئ. |
| - د زده کوونکو څخه وغواړئ چې پورتنی پوښتنې په لوړغږ کارو کړي او تاسې د هغو سره د |

| |
|---|
| جملو او کلمو په جوړولو کې مرسته وکړئ.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 66 مخ د Read and circle د برخې پوښتنې د ځان سره په پټه خو له ولولي او د صحیح ځوابونو نه د انځورونو شخه دګتې اخیستلو په مرسته کرښه تاوه کړي وروسته له هغې زده کوونکي په دوه کسیزه ډلوویشئ ترڅو دا فعالیت په لوړغږ سره ولولي او دویم زده کوونکې هغه ځواب ووایي چې کرښه یې ترې تاوه کړی ده. په هغه صورت کې چې د دویم زده کوونکي ځواب صحیح نه و بل زده کوونکي ته د ځواب ورکولو وخت ورکړئ. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندې پوښتنې له زده کوونکو شخه وکړئ.<br>1- د ?What are your hobbies پوښتنې ته ځواب کړئ.<br>2- د hobby کلمه په پښتو ژبه څه معنا ورکوي؟<br>3- آیا د ?What is your hobby پوښتنې ته ځواب او معنا ویلای شي؟<br>4- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د خپل خوښې د کارونو په هکله ولوستل او دا مو زده کړل چې کوم کارونه د خپلې ساعت تیرۍ له پاره سرته رسوو؟ |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 66 مخ د Read and circle د برخې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit eight
## My hobbies
## Lesson two

**مخونه:67-68**

**وخت:** يو درسي ساعت(45) دقيقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- متن په سمه توګه ولولي.

2- د ساعت تيرې او د خپلې خوښې کارونه به وپيژني او بيان يې کړي.

3- د نويو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنيو خبرو اتروکې ترې ګټه واخلي.

4- د کېسې(معما) په جدول کې کلمې پيدا کړي.

**نوي لغتونه:**poem, piano

شعر، پيانو

**د لوست د تدريس ميتودونه:** ځانګړی او ډله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

| |
|---|
| **فعاليتونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مود تيرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.<br>1- د What is your hobby? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>2- د Do you like playing football? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>ددې له پاره چې د زده کوونکو پام د نوي لوست زده کړی او د انګيزې د پيدا کېدو له پاره راوګرځوی دالاندې پوښتنې ترې وکړئ.<br>د کومو کارونو سره ډېره مينه لرئ؟<br>د وزګارتيا په وخت کې موکوم کار خوښيږي؟<br>د Do you like reading? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>- د 67 مخ د lets read د برخې متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسې ته په ځير سره غوږونيسي وروسته له هغې نه زده کوونکو ته دنده وسپارئ ترڅو متن د ځان سره په پټه خوله ولولي او په هغه کلمو کې چې معنا او يا تلفظ ك ستونزې ولري په نښه کړی.<br>- د زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ سره ولولي. وروسته بيا متن په لوړغږ ولولي اوويې ژباړي او له زده کوونکو څخه وغواړئ د هغو کلمو په معنا او تلفظ کې ستونزې ولري کرښې ترې لاندې وباسي.<br>- د زده کوونکو ته دنده وسپارئ ترڅو د Tick the correct answers د برخې پوښتنې د ځان سره په پټه خو له ولولي او صحيح ځواب ته د صحيح علامه او نښه کښيږ دی وروسته له هغې د هغوي څخه په دوه کسييزه توګه وغواړئ ترڅو پخپلو منځو کې په تمرين کارو کړي د بيلګې په |

توګه لومړی زده کوونکي پوښتنه کوي او دویم زده کوونکي ځواب ورکړي.

- زده کوونکي په دريو یا څلور کسیزه ډلووويشئ ترڅو د 68 مخ د cross word د برخې د انځوروونو نومونه د تورو په جدول کې پیدا کړي خولومړی تاسې په کتاب کې دورکړل شوي مثال د زده کوونکو سره په عملي توګه کار وکړئ او ورويې ښاياست.
- د هرې ډلې څخه وغواړئ ترڅو د هغه انځور نوم يې چې پیدا کړی دی ولولي او نورو ته يې وروښاياست.

**د کېسی د تمرين د حل شکل:**

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| f | i | s | h | i | n | g | g | b | c | d | l |
| v | f | q | z | s | j | h | a | g | r | c | i |
| r | e | a | d | i | n | g | r | e | i | c | s |
| s | c | x | t | o | p | x | d | f | c | u | t |
| o | f | z | i | q | d | z | e | c | k | s | e |
| u | s | w | i | m | m | i | n | g | e | h | n |
| i | a | w | s | h | o | a | i | r | t | n | i |
| b | p | a | i | n | t | i | n | g | v | g | n |
| c | c | o | o | k | i | n | g | s | m | v | g |
| j | q | z | k | l | m | r | c | h | e | s | s |
| f | o | o | t | b | a | l | l | t | y | i | y |

**ارزونه:**

د ډاډ حاصلو په هيله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.

1- د What are your hobbies? پوښتنو ته ځواب ووايي؟

2- آيا دکب نيول يوه ساعت تيري ده؟

3- آيا د What is your hobby? د پوښتنې په معنا پوهيږئ؟

4- آيا نننی لوست درته په زړه پوری و؟

**د لوست لنډيز:**

تاسې په نننې لوست کې د خپلې خوښې د کارونو په هکله ولوستل او زده موکړل چې کوم کارونه د ساعت تيرې له پاره سرته رسوو؟

**کورنی دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د crosswordبرخه په صحیح توګه وليکي او کلمې يې پيدا کړي.

## Unit eight
## My hobbies
## Lesson three

**مخونه:69-70**

**وخت:** يو درسي ساعت(45) دقيقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- نوې کلمې ولولي.

2- د نويو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنيو خبرواترو کې به د هغوی نه ګټه واخلي.

3- نوې کلمې هيجا اويا سپيل کړي.

**نوې لغتونه:** ridding, carbonic, walking

سپريدل، کاربونی، چکروهل

**د لوست د تدريس ميتودونه:** ځانګړی او ډله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو مو د تيرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1- داوريدلو او لوستلو کلمې په انګليسي ويلای شي؟

2- د Do you like playing tennis? پوښتنې ته ځواب ووايي.

د دی له پاره چې د زده کوونکو پام د نوي لوست زده کړې ته او د انګيزې د پيدا کېدو له پاره راوړوی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.

- د کومو کارونو سره مينه لرئ؟
- د وزګارتيا په وخت کې د کومو کارونو سرته رسول موخوښيږي؟
- Do you like reading پوښتنې ته ځواب ووايي.

- د let's learn something new دبرخې عبارتونه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځير سره غوږ ونيسئ او تکرارېې کړي.
- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ عبارتونه په لوړغږ ولولي وروسته عبارتونه په لوړغږ ولولي اوويې ژباړي.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ ترڅو عبارتونه د ځانه سره په پټه خوله ولولي او هر عبارت داړوند انځور سره ونښلوي وروسته د زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅويويو عبارت په لوړغږ ولولي او انځوريې وښايي په هغه صورت کې چې زده کوونکي غلطي وکړه موقع او وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.
- زده کوونکي په دوه کسيزه ډلوووېشئ ترڅو د 70 مخ د spelling برخه يو د بل سره به پټه خو له ولولي او تمرين يې کړي لومړی محاوره يو ځل تاسې په لوړغږ ولولئ.

| |
|---|
| - له زده کوونکو څخه په دوه کسییزه توګه وغواړئ ترڅو محاوره په لوړغږ ولولي او کاروکړي وروسته له هغې څخه یو ځل بیا محاوره په لوړغږ ولولي اوویې ژباړي او همدارنګه له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د هغو کلمو په معنا چې نه پوهیږي او یایې په تلفظ کې ستونزې ولري ولیکې.<br>- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ په دوه کسییزه توګه محاوره په لوړغږ ولولي او تمیثل یې کړي همدارنګه له دوه نورو کسانو څخه وغواړئ هغه وخت چې دوه کسییزه محاوره وایي دوي دې هغه وژباړي. |
| **ارزونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړی لاندنې پوښتنې وکړئ.<br>1- د آس ځغلولو او قدم وهلو کلمې په انګلیسي ژبه ووایي.<br>2- د How do you spell. Shopping? پوښتنې ته ځواب ووایي.<br>3- آیا په پارک کې قدم وهل یو ساعت تیری ده؟<br>4- آیا ننني لوست درته په زړه پوري و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې د ننني لوست عبارتونه چې د ساعت تیرۍ په هکله و ولوستل او زده موکړل چې کوم کارونه د سرګرمی له پاره سرته ورسوو. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 70 مخ د spelling دبرخې محاوره پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

**Unit eight**
**My hobbies**
**Lesson four**

**مخونه: 71–72**

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- نوي کلمې ولولي.

2- د نويو کلمو په معنا پوه به شي او په ورځنيو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

3- جملې په مناسبونويو کلمو سره ډکې کړي.

**د لوست د تدريس ميتودونه:** ځانګړی او ډله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:** ددې له پاره چې ډاډ مو ترلاسه کړی وي زده کوونکو مو د تيرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.

1- د horse riding عبارت په پښتو ژبه معنا کړئ.

2- د ?Do you like horse riding پوښتنې ته ځواب کړئ.

د زده کوونکو پام راګرځول د نوي لوست زده کړې ته او د انګيزې د پيدا کېدو په هيله لاندنې پوښتنې وکړئ:

- دوزګارتيا په وخت کې د کوم کارکولو ته خوښې ځرګندوئ؟
- د ?Do you like watching mouse پوښتنې ته ځواب ووايي؟
- د ساعت تيرئ کارونه موږ ته څه ګټه لري؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 71 مخ د جدول سره سم پخپلو کتابچو کې رسم کړي وروسته له هغوي څخه وغواړئ چې د خپلو درې ټولګيوالو څخه د کتاب دور کړل شوي مثال په ډول پوښتنې وکړئ او جدول ډک کړي.
- مخکې له دې نه چې زده کوونکي پخپل فعاليت شروع وکړي يو جدول پرتخته باندې رسم کړئ او ورکړل شوي مثال په عملي بڼه يو له زده کوونکو سره کارو کړئ او جدول ډک او تکميل کړئ وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړی توګه و غواړئ ترڅو خپل جدول چې ډک او بشپړ کړي يې دی په لوړغږ سره ولولي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 72 مخ د Look and write د برخې جملې دور کړل شويو کلمو په ذريعه تکميل او ډکې کړي او وروسته له هغې جملې داړوند وانځورونو سره ونښلوي وروسته له هغود زده کوونکو نه وغواړئ ترڅو يوه يوه جمله په لوړغږ سره ولولي او انځور يې وښايې په هغه صورت کې چې يو له زده کوونکو څخه غلطي وکړي موقع بل زده کوونکې ته ورکړئ.

| |
|---|
| **د تمرين حل:**<br>**Ahmad plays football every afternoon.**<br>Maliha goes to shopping at the weekend.<br>Mr. farooq paints pictures in his free time.<br>Ajmal and akmal play chess on Fridays.<br>Rashid listen to music in her free time.<br>Raza plays computer games every evening.<br>Haseeb  rides abike at the weekend.<br>Halima cooks dinner for us.<br>Sabawoon watches tv program in his free time.<br>Omid Arash like's to ride a horse. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هيله د زده کوونکو څخه لاندنۍ پوښتنې وکړئ.<br>1- د What do you do at the weekend? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>2- د How do you spell shopping? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>3- دوزگارتيا په وخت کې کوم کارونه سرته رسوئ؟<br>4- آيا نننی لوست درته په زړه پوری و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننې لوست کې هغه عبارتونه ولوستل چې د ساعت تيرۍ په باره کې ليکل شوي و او زده موکړل چې کوم کارونه د ساعت تيرۍ له پاره سرته رسوو؟ |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 72 مخ د Look and write د محاورې برخه پخپلو کتابچو کې وليکي. |

**Unit eight**
**My hobbies**
**Lesson five**

**مخونه:** 73-74

**وخت:** يو درسي ساعت (45 دقيقې)

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- نوې کلمې ولولي.

2- د نويو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنيو خبرواتروکې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** Enjoy, funny, fairy, tales, advantage, relax, calm, further, unlimited, imagination, culture, custom, usually.

**خوند اخيستل، مسخره، جادوګر، قصه، ګټه اخيستل، استراحت، آرام، اضافه، نامحدود، تخيل، فرهنګ، رسم و رواج**

**د لوست د تدريس ميتودونه:** ځانګړی او دله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو مو د تيرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.

1- دوزګارتيا په وخت کې د ساعت تيرې کارونه کوم دي؟

2- د Do you like playing tennis? پوښتنې ته ځواب کړی.

د زده کوونکو پام راګرځول د نوي لوست د پاره او د انګيزې د پيدا کېدو په هيله لاندنی پوښتنې وکړئ.

- آيا کولای شی چې دوزګارتيا په وخت کې دخپلوساعت تيرېو په هکله يوه مقاله وليکئ؟
- دوزګارتيا په وخت کې موکوم کار خوښيږي؟
- آيا دنيکونو او نياګانو سره ليدنه يو د ساعت تيرئ کاردئ؟

- د کتاب د 73مخ د Time to read برخه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو تاسې ته په ځير سره غوږ ونيسي وروسته هغوي ته لارښوونه وکړئ ترڅو متن د ځان سره په پټه خوله ولولي او دهغو کلمو لاندې چې په معنا او يا تلفظ کولو کې يې ستونزې ولري کرښه و کاږي.
- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ سره ولولي وروسته له هغوی متن يو ځل بيا په لوړغږ ولولي او ويې ژباړی.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د practice د برخې جملې د ځان سره په پټه خو له ولولي او په هغه صورت کې چې صحيح وي د T توری او که غلط وي د F توری په تش ځايونو کې وليکي وروسته د هغوي نه په دوه کسيزه توګه وغواړئ ترڅو دا تمرين پخپلو کې کار وکړي د مثال په توګه لومړې زده کوونکی يوه جمله وايي او دويم زده کوونکی وايي چې آيا

| |
|---|
| نوموړی جمله صحیح ده او یا غلطه.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د 74 مخ د Read and choose د برخې جملې د ځان سره په پټه خوله ولولي او صحیح جمله وټاکې. وروسته د هغوي نه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو جملې په لوړغږ سره ولولي او ووايي چې کومه یوه صحیح وه؟<br>- جملې یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړي وروسته له هغې له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځانګړي توګه یو ځل بیا جملې په لوړغږ ولولي او ویې ژباړي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله د زده کوونکو څخه لاندنې پوښتنې وکړئ.<br>1- د آس د ځغلولو او قدم و هلو کلمې په انګلیسي ژبه ووايي.<br>2- د What do you like to do on Fridays? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>3- آیا خوښیږی مو چې دوزګارتیا په وخت کې د فوټ بال لو به وکړئ؟<br>4- آیا ننني لوست درته په زړه پوري و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د ساعت تیرې د کارونو په هکله د رخصتیو په ورځو او وزګارتیا کې کوم شیان زده کړل. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 73 مخ د time to read د متن برخه پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Nine
## review
## Lesson one

**مخونه:** 76-77

**وخت:** يو درسي ساعت(45 دقيقې)

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- محاوره په سمه توګه ولولي او تمثيل يې کړي.
2- د هېوادونو بيرغونه وپيژني.
3- د هېوادونو په نومونو به وپوهيږي.
4- د نويو کلمو په معنا وپوهيږي او په ورځنيو خبرواترو کې ترې ګټه واخلي.

د لوست د تدريس ميتودونه: ځانګړی او ډله ييز

د لوست مرستندويه توکي: تخته، تباشير، فلش کارت

**فعاليتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړئ زده کوونکو مو د تيرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.

1- د ساعت تيرې کارونه دوزګارتيا په وخت کې کوم دي؟
2- د ?Do you like playing chess پوښتنې ته ځواب ووايي.

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګيزې د پيدا کېدو په هيله لاندنې پوښتنې وکړئ.

- د نړۍ د څو هېواد ونو نومونه اخيستلای شئ؟
- زموږ د هېواد بيرغ څورنګه لري د رنګونو نومونه په انګليسي ووايي.
- د ?Where are you from پوښتنې ته ځواب ووايي.

- د 76 مخ د dialogue د محاورې برخه په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو په ځير سره غوږ ونيسي. وروسته هغوی ته په دوه کسيزه توګه لارښوونه وکړئ ترڅو محاوره د ځانو سره په کراره ولولي او د هغو کلمو لاندې کرښې وکاږي چې په معنا يې نه پوهيږي او يا يې په تلفظ کې ستونزې ولري.
- د ټولګي د مختلفو برخو د څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې محاوره په لوړغږ ولولي او تاسې د هغو سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ. وروسته له هغې محاوره يو ځل بيا په لوړغږ ولولي اوويې ژباړئ.
- د زده کوونکو څخه په دوه کسيزه توګه وغواړئ چې د 76 مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې پخپلو کې تمرين کړي د بيلګې په توګه لومړی زده کوونکی پوښتنه لولي او دويم زده کوونکی د dialogue د برخې د معلوماتو نه په ګټې اخيستلو ځواب ووايي؟
- د بيرغونو د فلش کارتونو په ښورلو او يا د 77 مخ د puzzle مخ د انځورونو د زده کوونکو

| |
|---|
| خخه د هېوادونو نومونه و پوښتئ وروسته له هغې ورته لارښوونه وکړئ چې د هغو هېوادونو نومونه چې بيرغونه يې د کتاب په 77 مخ کې ګوري د تورو په جدول کې پيدا کړي او د هغوی په چارچاپيره دور کړل شوي مثال په توګه کاروکړي خو تاسي ورکړل شوي مثال هغوی ته په عملي توګه وروښاياست وروسته له هغوی څخه په ځانګړې توګه وغواړئ چې د هېوادونو نومونه او اړوند بيرغ يې تاسو او نورو ټولګيوالو وروښايي په هغه صورت کې چې لومړي زده کوونکي غلطي وکړه وخت دويم زده کوونکي ته ورکړئ. |
| **د معما د تمرين د حل شکل** |
| **ارزونه:**<br>دخپل ډاډ د حاصلو په هيله لاندني پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>1- د Where are from? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>2- د What colors are the flag of Afghanistan? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>3- د مليت کلمې ته په انګليسي کې څه وايي؟<br>4- آيا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننی لوست کې د هېوادونو نومونه او بيرغونه يې په تکراري توګه ولوستل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 77 مخ د puzzle د برخې شکل پخپلو کتابچو کې رسم کړئ او د هېوادونو نومونه پکې يو ځل بيا پيدا کړئ. |

| | | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| E | A | F | G | H | A | N | I | S | T | A | N |
| D | M | F | H | G | F | K | L | A | P | C | R |
| G | E | N | G | L | A | N | D | Z | A | S | U |
| E | R | B | A | V | N | V | C | X | K | U | S |
| R | I | N | D | I | A | Q | S | O | I | P | S |
| M | C | A | Z | R | A | W | D | X | S | U | I |
| A | A | X | N | A | I | S | I | Z | T | Y | A |
| N | H | V | B | N | P | A | U | T | A | K | D |
| Y | L | P | U | I | O | Q | E | Y | N | J | F |

**Unit nine**
**review**
**Lesson two**

**مخونه:** 78-79

**وخت:** یو درسي ساعت(45 دقیقې)

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- متن په سمه توګه ولولي.

2- پوښتنو ته به په سمه توګه ځواب ورکړي.

3- د نویو کلمو په ځواب پوه شي او په ورځنیو خبرواترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** kiss, lay, shaower, catch, begin

ښکلول، پریوتل، لمبل، نیول، پیل

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د ډاډ ترلاسه کولو په هیله چې زده کوونکو مو تیر لوست په سمه توګه تکرار کړی دی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.

1- څوک زموږ د هېواد د بیرغ رنګونه په انګلیسي ویلای شي؟

2- د ?Where are you from پوښتنې ته ځواب ووایي.

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.

- د شپې دویده کېدونه مخکې باید کوم کارونه سرته ورسوو؟
- په کورکې د کورني کارونو سرته رسول د څه شي سبب ګرځي؟
- د swim, write, play کلمو ته په پښتو ژبه کې څه وایي؟

- د کتاب د 78 مخ د lets read د برخې متن په لوړغږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د کلمو تلفظ ته په سمه توګه غوږونیسي وروسته له هغی نه له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو متن د خپلو ځانونو سره په پټه خو له ولولي او د هغو کلمو لاندې کرښې وکاږي چې په معنا یې نه پوهیږي او یا یې په تلفظ کې ستونزې ولري.
- د ټولګي د مختلفو برخو او ځایونو له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ ولولي وروسته له هغی نه متن په لوړغږ ولولی اوویې ژباړي.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ ترڅو د 78 مخ د true or false د برخې جملې دځانو سره په پټه خو له ولولي اود جملو ترڅنګ د سموالي په صورت کې د T توری اود غلطی په صورت کې د f توری ورته کښیږدی وروسته له هغوی نه په دوه کسییزه توګه وغواړئ ترڅو دا فعالیت سرته ورسوي د مثال په توګه: لومړی زده کوونکی یوه جمله وایي او دویم زده کوونکی وایي چې جمله سمه ده اوکه غلطه.

- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د 79 مخ د look and write د برخې جملې په ورکړل شوي کلمو سره ډکې کړی خو لومړی تاسو کلمې په لوړغږ سره ولولئ وروسته د هغی نه له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه جمله په لوړغږ ولولي په هغه صورت کې چې یو زده کوونکې جمله غلطه تکمیل او ډکه کړي وي وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.

**د تمرین حل:**

1- He swims
2- She writes
3- They fly
4- He walks
5- They read
6- He sees
7- It jumps
8- He plays

زده کوونکي په دوه کسییزه ډلو وویشئ ترڅو د Ask and answer د برخې پوښتنې پخپلو کې یو د بل سره تمرین کړي د بیلګې په توګه یو زده کوونکی پوښتنه وکړي او دویم زده کوونکی ځواب ورکړي.

**ارزونه:**

د ډاډ ترلاسه کولو په هیله د زده کوونکو څخه لاندنې پوښتنې وکړئ:

1- دالوتلو او لامبووهلو کلمې په انګلیسي ووایي.
2- په انګلیسي ووایي هغوی لوست وایي.
3- د نورو سره مرسته کول د چا د خوشحالی سبب کیږي؟
4- آیا ننني لوست درته په زړه پوري و؟

# Unit nine
# Review
## Lesson three

**مخونه:** 80-81

**وخت:** یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- ډله بندی وپیژني.

2- د میوو او سابو نومونه وپیژني او سپیل یې کړي.

3- د خوړو شیان یو د بل سره توپیر کړي.

**نوي لغتونه:**

Vitamin, nail, skin, milk, dairy, ill, bone, meat, muscle, cereal, starch, energy strong.

ویتامین، نوک، پوستکی، لبنیات، هډوکی، ناروغ، غوښه، عضله، حبوبات، نشایسته، انرژی، قوی

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی له پاره چې ډاډ ترلاسه کړی زده کوونکو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندنې پوښتنې ورخه وکړئ.

1- د fly, swim, play کلمې په پښتو معنا کړی.

2- د can a bird sing? پوښتنې ته ځواب کړی.

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندنې پوښتنې وکړئ.

- دسابو ګټې بیانولای شئ؟
- څوک د حبوباتو نومونه ویلای شي؟
- آیا د Carrot, potato, water melon کلمې په پښتو ژبه معنا او ویلای شي.

- د food groups د ډلی موضوع په لوړغږ ولولی او له زده کوونکو نه وغواړئ ترڅو د نویو کلمو تلفظ ته په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو دا موضوع په لوړغږ ولولي او تاسې د هغو سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړی وروسته له هغې موضوع یو ځل بیا په لوړغږ ولولي اوویې ژباړی.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د 80 مخ د lets spell د برخې انځورونو ته وګوري او د هغه نومونو ورک شوي توری په مناسبو تورو سره پوره او ډک کړی وروسته له هغی نه د زده کوونکو څخه په ځانګړی توګه وغواړئ ترڅو د انځورونو نومونه په لوړغږ سره سپیل کړل په هغه صورت کې چې یو زده کوونکې د کلمې سپیل غلط ووایي بل زده کوونکي ته وخت ورکړئ

| |
|---|
| چې نومونې لغت په سمه توگه سپیل کړي<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د match food groups د برخې انځورونه په ځیر سره وگوري او د کتاب سره سم چې لارښوونه شوې په گروپونو او ډلووویشي. او ورته ووایاست که انځور د میوې د کورنۍ څخه وي F او که د سابو له کورنۍ څخه وي V اوکه د حبوباتو له ډلې څخه وي د C توری په تش ځایونو کې ولیکې وروسته له هغوی نه په ځانگړي توگه وغواړئ ترڅو د انځورونو نومونه واخلی او ووایي چې جمله د کومو تورو پورې یعنې Cیا Fیا V اړه لري. |
| **ارزونه:**<br>دخپل ډاډ دلاس ته راوړلو په هیله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ<br>1- حبوبات په کوم ډول خوراکي مواد و پورې اړه لري؟<br>2- کوچو ته په انگلیسي ژبه کې څه وایي؟<br>3- د tomato کلمه څوک سپیل کوي؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسو په نننې لوست کې د خوراکي او خوړوډلې ولوستلې چې د کومو کورنیو پورې اړه لري. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړی ترڅو 80 مخ د food groups برخه پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit nine
## Review
## Lesson four

**مخونه: ۸۲–83**

**وخت:** یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- د خوړو په ډله بندۍ باندې پوه شي.

2- د میوو د خوړلو په ارزښت به پوه شي.

3- د نویو کلمو په معنا باندې پوه شي او په ورځنیو خبرواترو کې به ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه.** benefit, nutrient, important, low, calory, fat, source, suger, fiber, potassium, reduce, hear, sickness, kidney, decrease, blood.

ګټه، غذائی، مهم، ښکته، کالوری، چاغ، منبع، بوره، الیاف، پوتاشیم، کمول، اوریدل، ناروغی، پختورګی، کمول، وینه

د لوست د تدریس میتودونه: ځانګړی او ډله ییز

د لوست مرستندویه توکي: تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1- د carrot, water melon, potato, کلمې په پښتو معنا کړی.

2- د څو ډولو سابو نومونه واخلئ.

د زده کوونکو د پام راګر ځولو او د انګیزې د پیدا کېدو په هکله له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې کړئ.

- په انګلیسي د څو ډولو میوو نومونه ویلای شئ؟
- د میوو خوړل موږ ته څه ګټې لري؟
- څوک د milk کلمه سپیل کولای شي؟

- د Its time to read د برخې متن په لوړغږ ولولې او د زده کوونکو څخه وغواړئ چې د نویو کلمو تلفظ ته په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو لاندې کرښې وکاږي چې په معنا یې نه پوهیږي وروسته له هغې د څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ سره ولولي وروسته متن یو ځل بیا په لوړغږ ولولي اووېې ژباړي.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د 83 مخ د false او true د برخې جملې د ځانه سره په پټه خوله ولولي او هغه جملې چې صحیح وي د T توری او که غلطې وي د F توری یې ترڅنګ ولیکي وروسته له هغوی نه په دوه کسیزه توګه وغواړئ ترڅو دا فعالیت کارو کړي د بیلګې په توګه یو زده کوونکې جمله ووایي او بل زده کوونکې دې ووایي چې جمله سمه وه او که ناسمه

| |
|---|
| - زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 83 مخ د look and match د ځان سره په پټه خوله ولولي او هغه داړوند و انځورو سره ونښلوي وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو يوه يوه کلمه په لوړغږ ولولي او انځورېي په ګوته کړي په هغه صورت کې چې يو له زده کوونکو څخه اشتباه وکړي موقع او وخت بل زده کوونکې ته ورکړي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هيله له زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1- د کوچو او پينر کلمې په انګليسي ووايي.<br>2- د ميوو خوړل زموږ روغتيا ته څه ګټه لري؟<br>3- د appleکلمه څوک سپيل کولای شي؟<br>4- آيا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د ميوو په برخه کې ولوستل او همدارنګه د cabbage, milk, cheese, grapes, yogurt, apple, butter, carrot, water melon کلمې ولوستلې او د انځورونو سره مو وصل کړې. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړی ترڅو د 83 مخ د look and match د برخې موضوع په خپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit nine
# Review
## Lesson five

**مخونه:** 84-85

**وخت:** یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- دانځورونو نومونه سپیل کړي

2- سمې جملې تشخیص او وپیژني.

3- د عبارتونو معنا وپیژني او اړوند انځورونو سره اړیکه ورکړي.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ.<br>1- د carrot, water melon, potato کلمې په پښتو معنا کړی.<br>2- انګورو ته په انګلیسي کې څه وایې؟<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو له پاره لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>- د څو میوو نومونه په انګلیسي ویلای شئ؟<br>- د میوو خوړل موږ ته څه ګټه رسوي؟<br>- د milk کلمه سپیل کړی.<br>- له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو د 84 مخ د spelling د برخې انځورونو ته په کتاب کې وګوري او د هغوي نومونه په لوړغږ سره هیجا یا سپیل کړي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلط سپیل کړ بل زده کوونکي ته وخت ورکړئ چې سم یې سپیل کړي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 84 مخ د look read and circle د برخې جملې دځان سره په پټه خو له ولولي او د سمې جملې نه یوه دایره تاوه کړي وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړی توګه وغواړی ترڅو یوه یوه جمله ولولي او سمی جملې ووایي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 85 مخ د writing د برخې عبارت د ځان سره په پټه خوله ولولي او وروسته یې داړوند و انځورونو لاندې ولیکي وروسته هغوي ته لارښوونه وکړئ چې په ځانګړي توګه یوه یوه جمله عبارت په لوړغږ ولولي او انځور یې ورسره وصل او وښایې په هغه صورت کې چې یو له هغو څخه اشتباه وکړي بل زده کوونکي ته وخت او موقع ورکړئ. |
| |

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د لاس ته راوړلو له پاره لاندنۍ پوښتنې وکړئ:<br>1- Grape is a fruit جمله په پښتو معنا کړئ.<br>2- د میوو خوړل زموږ روغتیاته څه ګټه لري؟<br>3- د apple او milk کلمې څوک سپیل کولای شي؟<br>4- آیا نننۍ لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننۍ لوست کې د میوو په هکله ولوستل او همدارنګه د cabbage, milk, cheese, grapes, yogurt, apple, butter, carrot and water melon کلمې هم ولوستلې. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو 84 مخ د look, read and circle پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Ten
## Travel
## Lesson one

**مخونه:** 87–88

**وخت:** یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي چې.

1- محاوره په سمه توګه ولولي او تمثیل یې کړي.

2- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځنیو خبرواترو کې ترې ګټه واخلي.

3- پوښتنوته سم جوابونه ورکړي.

Reservation, stay, check, ideal

د یو چا ځانګړنه، پاتې کیدل، څارل، ډیر ښه، عالي

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی ډله ییز

**د لوست مرستدویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندنۍ پوښتنې ترې وکړئ.

1- د walking in the park, playing tennis عبارتونه په پښتو معنا کړی.

2- پنیر او شیدوته په انګلیسي کې څه وایي؟

د زده کوونکو د پام راګرځولو او د نوي لوست له پاره د انګیزې پیدا کو له پاره لاندنې پوښتنې د زده کوونکو څخه وکړئ.

- څه ډول کولای شو چې په یوه هوټل کې یوه کوټه ونیسو؟
- ترانسپورټي واسطی پیژنئ؟
- آیا آس یوه ترانسپورټي وسیله ده؟

- د کتاب د 87 مخ د dialogue محاوره په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو د نویو کلمو تلفظ ته په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته یو ځل بیا ډیالوګ په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ.
- زده کوونکې په دوه کسییزه ډلوویشئ ترڅو محاوره د ځانونو سره په کراره تمرین کړي وروسته له هغې نه د ټولګي د مختلفو ځایونو د زده کوونکو د ډلو څخه وغواړئ چې محاوره په لوړغږ تمثیل او اجرا کړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 88 مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې د محاورې نه د ګټې اخیستلو په وسیله پخپلو کې تمرین کړی لومړی وخت ورکړی چې دا کار د خپل نږدې ملګري سره سرته ورسوي. وروسته له څو ډلو څخه د ټولګي په مختلفو ځایونو کې وغواړئ ترڅو تمرین په لوړغږ سره کارو کړي د بیلګې په توګه لومړی زده کوونکی پوښتنه کوي او دویم زده کوونکی د محاورې د معلوماتونه د ګټې اخیستلو په ذریعه ځواب ورکړي.

| |
|---|
| - د 88 مخ د look and name د برخې کلمې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې وروسته يې تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو کلمې په لوړغږ ولولي. |
| **ارزونه:** د خپل ډاډ د حاصلولو په هيله د زده کوونکو څخه لاندنې پوښتنې وکړئ.<br>1- د Where are you from? پوښتنې ته ځواب کړی.<br>2- د آس او اوښ نومونو ته په انګليسي کې څه وايي؟<br>3- د لېږ د راليږ د واسطې کومې دي؟<br>4- آيا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسو په ننني لوست کې يوه محاوره د احمد خان په هکله ولوستله همدارنګه مو دليږد راليږ د واسطې لکه: آس Taxi, airplane, bus, camel, train, horse وپيژندې او پوه شوی. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د Ask and answer د برخې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي او پخپلو کتابچو کې يې وليکي. |

## Unit ten
## travel
## Lesson two

**مخونه:** 89–90

**وخت:** یو درسي ساعت(45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي چې.

1- متن به په سمه توګه ولولي.

2- د متن مفهوم باندې پوه شي.

3- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځنیو خبرواترو کې به ګټه ترې واخلي.

4- پوښتنوته به سم ځوابونه ورکړي.

**نوي لغتونه:** winter, cold, snow, cover, earth, sun, mirror, skate, wind, later, tired,

ژمی، یخ، واوره، پوښول، ځمکه، لمر، هنداره،

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ورڅخه وکړئ.

1- ټکسي او سرویس کلمو ته په انګلیسی کې څه وایي؟

2- د ?Where are you from پوښتنې ته ځواب ووایي.

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو له پاره لاندې پوښتنې ور څخه وکړئ.

- په ژمي کې کومې لوبې دود دي؟
- تاسو په ژمي کې کومې لوبې خوښوی چې ویې کړئ؟
- د ?Did you play ski last winter پوښتنې ته ځواب ووایي.

- د 89 مخ د let's read د برخې متن په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د نویو کلمو د تلفظ په وخت کې تاسو ته په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو لاندې کرښې وکاږي چې په معنا یې نه پوهیږي.
- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن په لوړغږ سره ولولي وروسته یو ځل بیا متن په لوړغږ ولولي اوویې ژباړي.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ ترڅو د 89 مخ د True or false د برخې جملې د ځانونو سره په پټه خوله ولولي او د متن څخه په ګټې اخیستلو سره ووائې چې جمله سمه ده او که ناسمه ده. وروسته له زده کوونکو څخه په دوه کسییزه توګه وغواړئ ترڅو دا فعالیت سرته ورسوي د مثال په توګه یو زده کوونکی دی جمله ووایي او بل دې ووایي چې جمله سمه ده او که ناسمه. خو لومړی تاسې یوه جمله د مثال په توګه زده کوونکو ته کارو کړئ.

| |
|---|
| - د 90 مخ د Listen and practice د برخې جملې په لوړغږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځير سره غوږ ونيسي اوله تاسو څخه وروسته يې تکرار کړي.<br>- جملې يو ځل بيا په لوړغږ ولولئ اوويې ژباړي وروسته له زده کوونکو څخه په دوه کسيزه توگه وغواړئ ترڅو دا فعاليت پخپلو منځو کې تر سره کړي د بيلگې په توگه يو زده کوونکی دې يوه پوښتنه ولولي او بل زده کوونکی يې ځواب ولولي.<br>- زده کوونکو ته په ځانگړي توگه لارښوونه وکړئ ترڅو د 90 مخ د Listen and practice د برخې يوه يوه جمله ولولي او وروسته له هغې يوه جمله د ځانه څخه جوړه او په لوړغږ يې ولولي تاسې هم د هغو سره د جملو په جوړولو کې مرسته وکړئ. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هيله لاندنې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>1- د ?Do you visit Kabul پوښتنې ته ځواب کړی.<br>2- ژمنی لوبې کومې دي؟<br>3- د ?It won't a nice day جمله څوک معنا کوي؟<br>4- آياننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په ننني لوست کې يو ژمنی متن و لوست او همدارنگه مو د Did په کلمې سره پوښته کول هم زده کړل. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 90 مخ د Listen and practice د برخې جملې پخپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit ten
## travel
## Lesson three

**مخونه:** 91-92

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې.

1 - د عبارتونو په معنا به پوه شي.

2 - نوي عبارتونه به سمه توګه ولولي

3 - له عبارتونو څخه به په جملو کې ګټه واخلي.

4 - محاوره په سمه توګه ولولي او تمثیل به یې کړي.

**نوي لغتونه:** Flight, take off, land, ticket, airport, passport

الوتنه، الوتل، کېښتل، ټکټ، هوائی ډګر، پاسپورت

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړی زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ورڅخه وکړئ.<br>1 - Did you travel around the world? دې پوښتنې ته ځواب ورکړي.<br>2 - د ژمنیولوبو څو ډوله نومونه ویلای شئ؟<br>د نوي لوست د پاره د زده کوونکو پام راګرځول اود انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>- الوتکه له کوم ځای څخه آلوتنه کوي؟<br>- په الوتکه کې د سپریدو د پاره څه شي ته اړتیاوي؟<br>- پاسپورټ د کوم ډول سفر له پاره په کاریږي؟<br>- د کتاب د ۹۱ مخ د Let's learn something new په لوړغږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو په څیر سره غوږ ونیسي او له تاسې وروسته یې تکرار کړی.<br>- عبارتونه یو ځل بیا په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړئ وروسته د څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې عبارتونه په لوړغږ ولولي.<br>- د ۹۲ مخ د let's work together د برخې محاوره په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته غوږ ونیسي وروسته د ټولګي د مختلفو برخو له څو ډلو زده کوونکو څخه وغواړئ چې محاوره په لوړغږ سره په دوه کسییزه توګه تمثیل کړی.<br>- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې انځورونو ته وګوري او تش ځایونه په کلمو کې د مناسبوتورو پواسطه ډک او تکمیل کړي وروسته له هغې له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه کلمه په تخته ولیکې په هغه کې صورت چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړي بل زده کوونکي ته وخت ورکړئ. |

| |
|---|
| |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هيله لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1 - د ټکيټ او پاسپورټ کلمې سپيل کړی.<br>2 - دي What time did your flight take off? پوښتنې ته ځواب ووايې.<br>3 - د take off عبارت په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>4 - آيا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د buy a ticket take off check the time table, check the passport او land عبارتونه ولوستل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د Let’s work together د برخې محاوره په خپلو کتابچو کې وليکي. |

**Unit ten**
**Travel**
**Lesson four**

**مخونه:** 93-94

**وخت:** يو درسي ساعت(۴۵) دقيقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې.

۱- متن به په سمه توګه ولولي.

۲- پوښتنوته به سم ځوابونه ورکړي.

۳- د interested په کلمې سره جمله وليکي.

۴- د نويو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنيو خبرواتروکې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** visit, gift, shop, ask, shopkeeper, suitable, hand kerchief, pretty, doll

ليدنه، ډالۍ، دکان، پوښتنه، دکاندار، مناسبه، د لاس دستمال، ښايسته، نانځکه

**د لوست د تدريس ميتودونه:** ځانګړی او ډله ييز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

**فعاليتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تيرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1 - د land اوTake off کلمې سپيل يا هيجا کولای شي؟

2 - دDid you have to check your passport? پوښتنې ته ځواب ورکړی.

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګيزې د پيدا کېدو له پاره لاندې پوښتنې ورځخه وکړئ.

- ځوک د Where are you from? پوښتنې ته ځواب ووايي.
- آيا د نانځکې نوم په انګليسي ويلای شئ؟
- افغانستان څه ډول يو هېواد دی؟

- متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترځو د نويو کلمو تلفظ ته په ځير سره غوږ ونيسي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا يې نه پوهيږي کرښې و کاږي وروسته له څو زده کوونکو نه وغواړئ چې متن په لوړغږ سره ولولي وروسته له هغې يې وژباړي.
- زده کوونکي په دوه کسييزه ډلو وويشئ ترځو د ۹۳ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره تمرين کړی د مثال په توګه يو زده کوونکې دې پوښتنه ولولي او بل زده کوونکي دې ځواب ولولي وروسته له هغې د ټولګي د مختلفو برخو د دوه کسييزه ډلو زده کوونکو څخه وغواړئ ترځو فعاليت په لوړغږ سره ولولي او کارو کړی.
- د ۹۴ مخ د let’s work together د برخې پوښتنې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د نويو کلمو تلفظ ته په ځير سره غوږ کيږدي او د هغو کلمو لاندې کرښې وکاږي چې په معنا يې نه پوهيږي وروسته له هغې د څو زده کوونکو څخه غوښتنه وکړئ ترځو پوښتنې په لوړغږ سره ولولي وروسته پوښتنې بيا په لوړغږ ولولي اوويې ژباړي.
- د I am interested in playing football, what about you? جملې په تخته وليکې اوويې

| |
|---|
| ژباړې او همدارنگه د یوې همداسې بلې جملې په جوړولو کې زده کوونکو ته تشریحات ورکړې وروسته له هغې له زده کوونکو څخه په څنځیری توگه وغواړئ ترڅو دا فعالیت سرته ورسوي. د مثال په توگه لومړی زده کوونکې وایي؟ I am interested in playing football ,what about you? او دویم زده کوونکې دځواب ورکولونه وروسته له دریم زده کوونکي څخه پورتنی پوښتنه کوي او هغه ورته ځواب وایي په همدې ډول ټول زده کوونکي په دی فعالیت کې ونډه اخلي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلو په هیله له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړې.<br>1 - د Where did you come from? پوښتنې ته ځواب ووایې.<br>2 - د hand kerchief, pretty, doll کلمې په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>3 - دا جمله Did he live in Herat? په پښتو معنا کړئ.<br>4 - آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د جمال په هکله یو متن و لوست او همدارنگه مو د پوښتنې کولو طریقه زده کړه. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۹۳ مخ د Ask and answer پوښتنې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit ten
# Travel
## Lesson five

**مخونه:** 95–96

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې:

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي چې.

1– د جملې دلیکلو په طریقه به پوه شي او په ورځنیو لیکنو کې ترې ګټه واخلي.

2– جملې به په سمه توګه ولیکې.

3– د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبرواتروکې به ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** start, capital, dot, finish, work

پیل، پایتخت، ټکی، پای ته رسول، کار

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی له پاره چې ډاډ ترلاسه کړی زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

۱– د ?I am interested in playing football what about you پوښتنې ته ځواب ووایي.

۲– د رانیولو او نانځکې کلمو ته په انګلیسي کې څه وایي؟

د دی له پاره چې د زده کوونکو پام نوي لوست ته راوګرځوي او انګیزه پیدا کړی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

- د ?Where do you live پوښتنې ته ځواب ووایي.
- آیا د نانځکې نوم په انګلیسي ویلای شي؟
- د پوښتنې د جملې په پای کې کومه علامه استعمالیږي؟

- د writhing tips د برخې د جملو لارښونې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته له هغې دیوې جملې دلیکلو لارښوونه په عملي توګه په تختې باندې زده کوونکو ته ورکړی وروسته له هغې له خو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو د writing tips د جملو برخه په لوړغږ ولولي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۹۵ مخ د Let's practice د برخې جملې په سمه توګه پخپلو کتابچو کې ولیکې وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه جمله په تخته ولیکئ په هغه صورت کې چې یوله زده کوونکو څخه سهوه شي وخت بل زده کوونکې ته ورکړی.
- زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د ۹۶ مخ د Let's work togetherد برخې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي او ځوابونه ورکړي خو لومړۍ جملې په لوړغږ ولولي اوویې ژباړي وروسته له زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ ترڅو دا فعالیت سرته ورسوي د مثال په توګه یو زده کوونکو دې پوښتنه ووایي او دویم زده کوونکې دې ځواب ورکړي.

| |
|---|
| |
| **ارزونه:**<br>دخپل ډاډ د حاصلو په هيله لاندې پوښتنې د زده کوونکو څخه وکړئ.<br>1 - د ?Where do you live پوښتنې ته ځواب کړئ.<br>2 - د پوښتنې جملې په کوم ډول نښې سره پای ته رسيږي؟<br>3 - د انګليسي جمله په کوم ډول تورو سره ليکل او پيل کيږي؟<br>4 - آيا نننی لوست په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د جملو دليکلو طريقه ولوستله؟ |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو پنځه پوښتنې پخپلو کتابچو کې وليکي او ځواب ورکړي. |

# Unit Eleven
## Festival and ceremonies
### Lesson one

**مخونه:** 97-98

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې:

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1- محاوره په ښه توګه ولولي او تمثیل یې کړي.

2- د رخصتیو په مراسمو پوه شي او په دې اړه جملې جوړې کړي.

3- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځنیو خبرواترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** Holidays, grand parent, money, cookies

رخصتی ځانی، نیکه اونیا، پیسی، کلچی

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.<br>1- د Where do you live? پوښتنې ته ځواب کړی.<br>2- د پوښتنې د جملو پای کې کومه علامه ږدو؟<br>ددې له پاره چې د زده کوونکو پام نوي لوست ته راوګرځوو او انګیزه پیدا کړو دا لاندې پوښتنې وکړئ.<br>- د کال کومې ورځې مو ډیرې خوښیږي؟<br>- اختر د کومو کارونو د سرته رسولو له پاره وي؟<br>- څوک د چای کلمه په انګلیسي ویلای شي؟<br>- د کتاب د 98 مخ د dialogue د برخې موضوع په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو د نویو کلمو تلفظ ته په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغه کلمو لاندې کرښې وباسي چې به معنا یې نه پوهیږي وروسته له هغې نه د څو زده کوونکو نه وغواړئ چې محاوره په لوړغږ یو د بل سره ولولي او تمثیل یې کړي وروسته یو ځل بیا محاوره په لوړغږ ولولئ اوویې ژباړي.<br>- زده کوونکې په دوه کسیزه ډلوویشئ ترڅو د Ask and answer د برخې فعالیت پخپلو کې کارو کړی لومړی پریږ دی چې په کراره یې پخپلو کې تمرین وکړی وروسته په ټولګې کې د مختلفو ځایونو له دوه کسییزه ډلو څخه وغواړئ چې محاوره تمریناو په لوړغږ سره کارو کړی.<br>- د look and name د برخې کلمې په لوړغږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې نه وروسته یې تکرار کړي. وروسته له هغې د څو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو کلمې په لوړغږ ولولي. |

| |
|---|
| |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله له زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړئ.<br>1- د ?Do you love Eid holidays پوښتنې ته ځواب ووایي؟<br>2- د ?Where do you go on Eid holidays پوښتنې ته ځواب ورکړی.<br>3- د green tea او cookies کلمې په پښتو څه معنا ورکوي؟<br>4- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننې لوست کې رخصتیو دورځو په هکله محاوره ولوستله او همدارنګه مو د green tea او cookies cake, chocolate, coffee د کلمو په هکله معلومات ولوستل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د Ask and answer د برخې پوښتنې پخپلو کتابچو کې ولیکې. |

# Unit eleven
# Festival and ceremonies
## Lesson two

**مخونه:** 100-101

**وخت:** یو درسي ساعت(۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي چې.

1- په سمه توګه به متن ولولي.

2- د نویو کلمو په معنا به پوه شي او په ورځېنو خبرواتروکې به ګډه ترې واخلی.

3- پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

**نوي لغتونه:** important, celebration, happen, fun fair, fire work, sweet

مرهم، تجلیول، واقع، ښه ساعت تیری، د اور کار، خوږ

**د لوست د تدریس میتودنه:** ځانګړی دلهییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو تیر لوست په کورکې تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

1- د کال کومې ورځې مو ډیرې خوښیږي؟

2- د تور او شین چاى کلمو ته په انګلیسي کې څه وایي؟

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته اود انګیزې د پیدا کېدو له پاره لاندې پوښتنې ترې وکړئ.

- د اختر په ورځو کې کومو ځایونه ته ځی؟
- د لوبو کوم وسایل مو خوښیږي چې پرې سپاره شی؟
- په یوه کال کې څو وارې اختر راځي آیا ویلای شئ چې نومونه یې واخلئ؟

- د 100 مخ متن په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د سختو کلمو تلفظ ته په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو لاندې کرښې وکاږي چې په معنا یې نه پوهیږي وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړئ ترڅو متن په لوړغږ سره ولولي وروسته یو ځل بیا متن په لوړغږ ولولي اوویې ژباړي.
- زده کوونکي په دوه کسیزه ډلوویشي ترڅو د Let's work together د برخې پوښتنې یو د بل سره کار وکړي د مثال په توګه یو زده کوونکې پوښتنه وکوي او بل زده کوونکې د Let's read د برخې نه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکوي.
- د 101 مخ listen and practice د برخې پوښتنې په لوړغږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته له هغې نه د زده کوونکو نه په دوه کسیزه ډلو په توګه وغواړی چې فعالیت سرته ورسوي د مثال په توګه یو زده کوونکې دې پوښتنه ورکړي او بل دې ځواب ولولي.
- له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه جمله په لوړغږ ولولي او وروسته یوه جمله د ځانه جوړه کړي او تاسو هم د هغوی سره د جملې په جوړولو کې مرسته وکړئ.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>دخپل ډاډ د حاصلولو په هيله لاندې پوښتنې وکړئ:<br>1- د Do you buy new clothes for Eid? پوښتنې ته ځواب کړئ.<br>2- د sweet او cat کلمې په پښتو څه معنا ورکوي؟<br>3- د لوبو او کالو(جامو) نومونه په انگليسي ووايي.<br>4- آيا نننی لوست څخه موځه زده کړل؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننې لوست کې يو متن د اختر په هکله ولوست او همدارنگه مود do په کلمې سره پوښتنې او ځوابونه ورکړل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 101 مخ د Listen and practice د برخې جملې پخپلو کتابچو کې وليکي. |

**unit eleven**
**Festival and cermonies**
**Lesson Three**

**مخونه:** 102 –103

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1. نوي عبارتونه په سمه توګه ولولي.
2. د نویو عبارتونو په معنا پوه شي.
3. د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبرو اترو کې به ترې ګټه واخلي.
4. محاوره په سمه توګه ولولي او تمثیل یې کړي.
5. نوي کلمې سپیل یا توری ووایي.

**نوي لغتونه:** Dinner, baker, set, clean, sing, wear, special, hold

د شپې ډوډۍ، نانوائي، تنظیمول، پاک، غزل، خاص، نیول

**د نوي لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی، ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې د پاره چې ډاډ حاصل کړی زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړی:

1. په یوه کال کې څو واره اختر وي؟
2. د Do you buy new clothes for Eid? پوښتنې ته ځواب ورکړی.

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو له پاره لاندې پوښتنې وکړئ.

- تاسې په کور کې کوم کار سرته رسوئ؟
- د شپې ډوډۍ ته په انګلیسي کې څه وایي؟
- د What time does your mum make dinner? پوښتنې ته ځواب ورکړی.

د 102مخ د برخې عبارتونه په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د نویو کلمو تلفظ ته غوږ کیږدي او پام ورته وکړي وروسته له هغې د څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې عبارتونه په لوړ غږ سره ولولي وروسته عبارتونه یو ځل بیا په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي.

د 103 مخ د محاورې د برخې Let's work together په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته له زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ ترڅو محاوره په لوړ غږ کار وکړي وروسته له هغې محاوره بیا په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي.

له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د.Let's spell د برخې د انځورنو نومونه په لوړ غږ سپیل یا هیجا کړي. په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړه بل زده کوونکي ته وخت ورکړئ چې سم یې سپیل کړي.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله د زده کوونکو څخه دا لاندې پوښتنې وکړئ:<br>1. د ?Who sets The table پوښتنې ته ځواب ورکړی.<br>2. د cake, green ten, black tea کلمې په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>3. آیا د نني لوست نه مو څه زده کړل؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې نني لوست کې نوي عبارتونه زده کړل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کووکو ته لارښوونه وکړئ چې د Let’s learn some thing new د برخې عبارتونه پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# unit eleven
# Festiral and cermonies
# Lesson Four

**مخونه:** 104 -105

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې:

1. شعر به په سمه توګه ولولي.
2. د شعر په مفهوم به پوه شي.
3. پوښتنو ته به په سمه توګه ځواب ورکړي.
4. د نويو کلمو په معنا به پوه شي او په ورځنيو خبرو اترو کې به ګټه ترې واخلي.
5. نوي لغتونه: year, work, fun, safe, welcome

کال، کار، ساعت تیری، ساتل کیدل، ښه راغلی

**د لوست د تدريس ميتودونه:** ځانګړی او ډله ايیز

**د لوست مرستندويه توکي:** تخته او تباشير

| |
|---|
| **فعاليتونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډ ترلاسه کړی زده کوونکو مو د تيرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>1. د What time does your mother make dinner? پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>2. د dinner او blacktea کلمې په پښتو کې څه معنې ورکوي؟<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګيزی د پيدا کيدو د پاره لاندنې پوښتنې وکړئ.<br>د خدای په آمانۍ عبارت ته په انګليسي څه وايي؟<br>آيا د پښتو کوم شعر سره بلد ياست؟<br>د 104 مخ د شعر د برخې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې وروسته يې تکرار کړي هڅه وکړی چې د شعر لوستل په شعري غږ او تمثيل سره يو ځای وي او زده کوونکي دې تاسو ته ښه غوږ ونيسي.<br>– له څو تنو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو شعر په لوړ غږ ولولي وروسته له هغې يو ځل بيا شعر په لوړ غږ ولولي او ويې ژباړي.<br>– د 104 مخ د Listan and repeat د برخې جملې په لوړ غوږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې له تاسې وروسته يې تکرار کړي وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه د دوه نفري ډلو په توګه وغواړئ ترڅو جملې په لوړ غږ ولولي.<br>– زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د 105 مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې ته پخپلو کتابچو کې ځوابونه ورکړي او ويې ليکي وروسته د زده کوونکو څخه په دوه کسييزه توګه وغواړئ ترڅو فعاليت پخپلو منځو کې تمرين کړي د مثال په توګه لومړی زده کوونکې پوښتنه وکړي او دويم زده کوونکې ځواب ورکړي او تاسې هم په ځواب ورکولو کې ورسره لازمه مرسته وکړئ. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو به هيله لاندې پوښتنې وکړئ. |

| |
|---|
| 1. د Do you love Eid holi days? پوښتنې ته ځواب ووایي.<br>2. باراني کلمه په انګلیسي معنا کړئ؟<br>3. د Weather کلمه په پښتو معنا کړئ؟<br>4. آیا نني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې د شعر د لوستلو طریقه زده کړه او ولوستله او همدارنګه مو د Do په کلمې سره پوښتنه کول او ځواب ورکول سرته ورسول. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د رخصتیو د ورځو په باره کې پنځه جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

**unit eleven**
**Festival and ceremonies**
**Lesson Five**

**مخونه:** 106

**وخت:** یو درسي ساعت (45) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1. کیسی (معما) به وپیژني.
2. کیسی به حل کړای شي.
3. کلمې د اړوندو انځورو سره ربط ورکړي.

نوي لغتونه:

**د لوست د تدریس میتودونه:** څانګړي

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

ددې د پاره چې ډاډ حاصل کړی زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

1. د Good bye جمله په پښتو معنا کوي؟
2. د تیرې ورځې شعر د څه شي په هکله و؟

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کیدو په هیله لاندې پوښتنې وکړئ:

- تراوسه مو معما (کیسی) حل کړې ده؟
- د Green tea او black tea کلمو ته په پښتو کې څه وایې؟

- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ ترڅو د کیسي (معما) د Lets practice something different برخه د خپل نږدې ملګري سره حل کړئ خو لومړی تاسې ورکړل شوي مثال زده کوونکو ته په عملي توګه وروښایاست وروسته له هغې له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ ترڅو چې یوه یوه کلمه یې پیدا کړی ده په لوړ غږ سره لولي او په جدول کې یې وښایي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړه وخت او موقع بل زده کوونکي ته ورکړي:

**د تمرین حل**

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| *c* | *o* | *f* | *f* | *e* | *e* |
| o | c | a | k | e | o |
| o | t | s | a | v | E |
| k | e | l | e | q | e |
| i | a | p | k | u | w |
| e | g | r | e | e | n |
| s | t | m | y | t | r |

| |
|---|
| - زده کوونکو ته لارښوونه وکړی، ترڅو د Look and Match برخه د ځان سره په پټه خوله ولولي او د اړوندو انځورونو سره ربط ورکړي. وروسته له هغې د زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو یوه یوه کلمه په لوړ غږ سره ولولي او انځور یې وښايي. په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړه اجازه ورکړی چې بل زده کوونکی کلمه ووايي او انځور یې وښايي. |
| **ازرونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندې پوښتنې وکړي:<br>1. د ?Do you love Eid holidays پوښتنې ته ځواب ووايي.<br>2. د قهوې او کلچې کلمې په انګلیسي کې معنا کړي؟<br>3. د Cho collate کلمه په پښتو معنا کړي؟<br>4. آیا ننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننې لوست کې معما کېسې حل کړه او همدارنګه مو کلمې د انځورنو سره ربط ورکړی. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړی ترڅو کیسی یا معما پخپلو کتابچو کې ولیکي او کلمې په کې پیدا کړي. |

# Unit Twelve
## Services
## Lesson one

**مخونه: ۱۰۹-۱۰۸**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- محاوره په سمه توګه ولولي او تمثیل یې کړي.

۲- د محاورې مفهوم درک کړي.

۳- پوښتنو ته په سمه توګه ځواب ورکړي.

۴- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځینو خبرو اترو کې به ګټه ترې واخلي.

نوي لغتونه:

fix, sure, garage, comer, open, maybe, mechanic, driver, pilot, baker, fire fighter

**نوې اصطلاح ګانې:** excuse me sir, you are welcome

جوړول، داده، مستری خانه، راتلونکی، خلاص، شاید، میخانیک، موټروان، پیلوت، نانوایی، د اور کار کوونکی، ښاغلیه وبخښه، د مننې وړ نه ده.

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

۱- د coffee او green tea کلمې په پوښتنو معنا کړی.

۲- د خدای په امانی اصطلاح په انګلیسي کې څه ده؟

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو له پاره لاندې پوښتنې وکړئ:

- که له یو چا څخه د څه شي پوښتنه کوي لومړی څه وایې؟
- که ستا موټر خراب شي چېرې یې وړې؟
- آیا د پیلوټ او آشپز کلمې په انګلیسي ویلای شی؟

- د ۱۰۸ مخ د dialogue د برخې محاوره په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د نویو کلمو تلفظ ته په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته له زده کوونکو څخه د دوه کسییزه ډلو په توګه وغواړئ چې ډیالوګ د خپل نږدې ملګري سره په کراره تمرین کړي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي کرښې وکاږي.
- محاوره یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې محاوره په لوړ غږ ولولي او تمثیل یې کړي او بیا یې وژباړي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دوه کسییزه ډلو په توګه د Ask and answer د برخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره په کراره تمرین کړي وروسته د ټولګي د مختلفو ځایونو د ډلو څخه وغواړئ چې فعالیت په لوړ غږ سره کار وکړي د مثال په توګه یو زده کوونکې پوښتنه لولي او دویم زده کوونکې د

| |
|---|
| ډیالوګ د معلوماتونه په ګټې اخیستلو سره ځواب ورکوي.<br>- د listen and repeat برخې کلمې په لوړ غږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د نویو کلمو تلفظ ته په ځیر سره غوږ شي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ تر څو نوې کلمې په لوړ غږ سره ولولي او تاسې هڅوي سره د کلمو په سم تلفظ کولو کې مرسته وکړې. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو له پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د میخانیك او پاکوونکی کلمو ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>۲- د What did the shopkeeper show to the driver? پوښتنې ته ځواب ورکړئ.<br>۳- آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې ولوستل چې په څه ډول د یوه ځای او یا ادرس پوښتنه وکړو او همدارنګه نوې کلمې لکه: Mechanic, driver, pilot, baker, cleaner, fire fighterمو هم زده کړې. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۰۹ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې په خپلو کتابچو کې ولیکي او ځواب ورکړي. |

# Unit twelve
# Services
# Lesson two

**مخونه:** ۱۱۱-۱۱۰

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

موخې زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- متن په سمه توګه ولولي.

۲- د متن په مفهوم باندې پوه شي.

۳- پوښتنو ته سم ځوابونه ورکړي.

۴- د نويو کلمو په معنا پوه او په ورځنيو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** puppy, outside, shy, follow, suddenly, wake up, fire station, bark, truck, leave, behind, hero

پاپي سپی، د باندی، شرمیدل، تعقیبول، واردواره، ویښیدل، اور زمړه کول تم ځای، پریښودل، لاری، غپل

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی لپاره چې ډاډ ترلاسه کړي زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړي دی لاندني پوښتنې ترې وکړئ:

۱- که چا نه د یو ځای یا ادرس پوښتنه کوي نو لومړی څه وايي؟

۲- د fire fighter او mechanic کلمو ته په پښتو څه وايي؟

د زده کوونکو پام را ګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو د پاره لاندې پوښتنې وکړئ:

- په عاجلو وختونو لکه: د اور لګیدنه او ناروغی کې باید څه وکړو؟
- آیا د پولیسو عاجلو شمیرو سره بلد یاست؟
- د پولیسو او امبلانس د عاجلو (چټکو) شمیر ولرل څه ګټه لري؟

- د کتاب ۱۱۰ مخ د Lets read د برخې متن په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړې تر څو په ځیر سره د نويو کلمو تلفظ ته غوږ ونیسی وروسته له هغو څخه وغواړې چې متن د ځانو سره په پټه خوله ولولي او د هغه کلمو لاندې کرښې وباسي چې په معنا يې نه پوهیږي.
- له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن په لوړ غږ ولولي بیا وروسته متن یو ځل په لوړ غږ ولولي او ویې وژباړی.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د Ask and answer د برخې جملې د ځانو سره په پټه خوله ولولي او د مخکېنی مخ د معلوماتو نه په ګټې اخیستلو نښې ورته کیږدي هغوی ته شرح کړي په هغه صورت کې چې جمله سمه وي د T توری او که نا سمه وي د F توری ورته کیږدي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځانګړي توګه یوه یوه جمله په لوړ غږ ولولي او ووايي چې سمه ده او که نا سمه جمله ده.

| |
|---|
| **ارزونه :**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو له پاره لاندي پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د اور او انګړ کلمو ته په انګلیسي کې څه وايي؟<br>۲- د He loves the children جلمه په پښتو معنا کړئ.<br>۳- د کیسې مفهوم په پښتو ویلای شي.؟<br>۴- آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نن‌ني لوست کې یو متن د هوښیار سپي په هکله ولوست. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د Ask and answer د برخې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit twelve
# Services
## Lesson three

**مخونه: ۱۱۳-۱۱۲**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

موخې: زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- د پوښتنې کولو جملې په سمه توګه ولولي او ځواب به ورکړي.

۲- د نویو عبارتونو په معنا او مفهوم پوه شي.

۳- نوي عبارتونه په سمه توګه ولولي.

۴- د نويو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنيو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

نوي لغتونه: job, break, fast, cheap, hire, call, ask , information

دنده، ماتول، روژه، ارزانه، کرایه، بلل، پوښتنه، معلومات

**نوي اصطلاح ګانې:**

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی، ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی لپاره چې ډاډ ترلاسه کړي زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړي دی لاندنې پوښتنې ترې وکړئ:

۱- د fire fighter او Mechanic کلمو ته په پښتو کې څه وایي؟

۲- د Where is the garage? پوښتنې ته ځواب وایې؟

د زده کوونکو پام را ګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو د پاره لاندې پوښتنې وکړئ:

- آیا د امبلانس چټکه (عاجله) شمیره پیژنې ؟
- ښوونځي ته په څه شي کې راځئ؟
- د How do you come to school? پوښتنې ته ځواب ورکړی.

- د کتاب ۱۱۲ مخ د Listen and Practice د برخې جملې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ تر څو په ځير سر تاسې ته غوږ ونیسي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې دا فعالیت په دوه کسییزه توګه سره ته ورسوي د مثال په توګه یو زده کوونکې پوښتنه کوي او دویم ورته ځواب ورکوي.
- د Let's work together د برخې جملې په لوړ غږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته له څو زده کوونکو څخه د دوه کسییزه ډلو په ټوګه وغواړئ تر څو فعالیت پخپلو کې کار وکړی. وروسته یو ځل بیا جملې په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي.
- د ۱۱۳ مخ د عبارتونو برخه په لوړ غږ ولولي او وئی ژباړي وروسته له هغې له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې عبارتونه په لوړ غږ ولولي.
- د ۱۱۳ مخ دlisten and repeat د برخې جملې په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ تر څو جملې په لوړ غږ ولولي او تاسو د هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو له پاره لاندي پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د Put on the fire عبارت په پښتو کې څه معناورکوي؟<br>۲- په پښتو کې د Information desk, get on کلمې څه معنا لري؟<br>۳- د What time does it open? پوښتنې ته ځواب ورکړی.<br>۴- آيا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د پوښتنې کولو جملې ولوستلې. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۱۲ مخ د Let's work together جملې پخپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit twelve
# Services
## Lesson four

**مخونه: ۱۱۵-۱۱۴**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- شعر په سمه توګه ولولي.

۲- د شعر په معنا او مفهوم پوه شي.

۳- انځورونه د اړوندو عبارتونه سره وصل کړي.

۴- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځینو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

نوي لغتونه: Wait, move, aside, urgent, fail, need, quick, aid

حرکت کول، انتظار کول، یو اړخ ته، عاجل، پاتی، اړ ، ژر، مرسته

نوې اصطلاح ګانې:

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی، ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

۱- د get off the bus او Get on the bus عبارتونه په پښتو څه معنا لري؟

۲- د How Did you come to school? پوښتنې ته ځواب ورکړی.

د زده کوونکو پام را ګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې وکړئ:

- امبلانس د کومو کارونو د سرته رسولو لپاره دي؟
- ولې امبلانس خپل اژیر روښانه کوي؟

- د ۱۱۴ مخ د Let's read د برخې شعر په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د نویو کلمو ته په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي کرښې وکاږي.
- د څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځانګړې توګه شعر په لوړ غږ ولولي او تاسې هم د هغوی سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ وروسته له هغې یو ځل بیا شعر په لوړ غږ سره ولولي او ویې وژباړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۱۴ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره په کراره کار وکړي خو لومړی مخکې له هغې تاسې پخپله جملې یو وار په لوړ غږ ولولئ او که اړتیا وه نو ویې ژباړئ وروسته د ټولګي د مختلفو ځایونو د څو زده کوونکو څخه په ډله ییزه توګه وغواړئ چې دا فعالیت پخپلو کې کاروکړي.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې د ۱۱۵ د Look and match د برخې عبارتونه د ځان سره په پټه خوله ولولي او هغه د اړوند انځورونو سره ربط ورکړي.
- وروسته له هغې د څو زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ تر څو یو یو عبارت په لوړ غږ سره ولولي او انځور یې وښایې په هغه صورت کې چې یوه زده کوونکي اشتباه وکړه وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو له پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د Put on the fire عبارت په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>۲- د Information desk, get on کلمې په پښتو څه معنا ورکوي؟<br>۳- د What time does it open? پوښتنې ته ځواب ورکړئ.<br>۴- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې یو شعر د امبولانس په هکله ولوست او همدارنګه مو انځورونه د اړوندو عبارتونو سره ربط ورکړل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۱۴ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

## Unit twelve
## Services
## Lesson five

**مخونه:** ۱۱۶

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- غلطې شوې جملې په سمه توګه ولیکي.

۲- پوښتنو ته سم ځوابونه ورکړي او ویې لیکي.

۳- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځېنو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی، ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>۱- د get off the bus او Get on the bus عبارتونه په پښتو څه معنا ورکوي؟<br>۲- څوک د How do you come to school? پوښتنې ته ځواب ورکوي؟<br>د زده کوونکو پام را ګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندنې پوښتنې وکړئ:<br>- د جملې د لیکلو قانون بیان او ووایاست؟<br>- د پوښتنې کولو د جملې په پای کې د کومې نښې نه ګټه اخیستل کیږي؟<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړي تر څو د ۱۱۴ مخ د Read and write د برخې جملې د ځان سره په پټه خوله ولولي او د هغه سم شکل (بڼه) یې په کتابچو کې ولیکي وروسته له هغې د څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې په وار سره یو یو زده کوونکي د تختې مخې ته راشي او یوه یوه جمله په تختې باندې ولیکي په هغه صورت کې چې یو زده کوونکی غلطي وکړي وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.<br>- زده کوونکی ته دنده ورکړئ تر څو د ۱۱۶ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې د ځان سره په پټه خولې ولولي او هغوی ته پخپلو کتابچو کې ځواب ورکړي وروسته له هغې د زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ تر څو فعالیت په لوړ غږ سره ولولي او سر ته یې ورسوي د مثال په توګه لومړی زده کوونکې جمله ولولي او دویم زده کوونکی ځواب ورکوي په هغه صورت کې چې دویم زده کوونکی ځواب ورنه کړای شي وخت بل زده کوونکی ته ورکړئ. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو د پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- مثبتې جملې څه ډول په منفي جملو بدلیږي؟<br>۲- د پوښتنې جملې په کومې علامې سره پای ته رسیږي؟<br>۳- Where do you live? پوښتنې ته ځواب ورکړی.<br>۴- آیا نننی لوست درته په زړه پوري و؟ |

| |
| --- |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننې لوست کې یو ځل بیا د جملې د لیکلو طریقې په تکراري توګه ولوستلې. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۱۴ مخ د .Ask and answer د برخې پوښتنې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Thirteen
# Media
## Lesson one

**مخونه: ۱۱۹–۱۱۸**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

موخې: زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱– محاوره په سمه توګه ولولي او تمثیل یې کړي.

۲– پوښتنو ته په سمه توګه ځواب ورکړي.

۳– د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځینو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

نوي لغتونه: Match, channel, report, news, face book, television, twitter, internet

**مقابله، کانال، راپور، خپرونه، فیسبوک، تلویزیون، ټویټر، انترنت**

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړي دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

۱– د پوښتنې د جملې پای ته کومه نښه استعمالیږي؟

۲– د جملې د لیکلو قانون بیان کړئ؟

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو د پاره لاندنې پوښتنې وکړئ:

- د تلویزیون د خو شبکو نومونه واخلئ؟
- د تلویزیون کومه خپرونه مو خوښیږي؟
- آیا خبرونو سره مینه لرئ؟

- د کتاب ۱۱۸ مخ د dialogue د برخې محاوره په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د نویو کلمو تلفظ ته په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي کرښې وکاږي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ تر څو محاوره په لوړ غږ ولولي او تمثیل یې کړي وروسته له هغې محاوره یو ځل بیا په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۱۹ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره په کراره تمرین کړي د مثال په توګه یو زده کوونکې پوښتنه لولي او دوهم ځواب ورکړي وروسته له څو زده کوونکو څخه په دوه دوه کسیزه توګه وغواړئ چې فعالیت په لوړ غږ کار وکړي.
- د۱۱۹ مخ د listen and repeat د برخې کلمې په لوړ غږ ولولي او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې وروسته یې تکرار کړي وروسته له هغې د څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې نوموړی کلمې په لوړ غږ ولولي.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو له پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د report او news کلمې په پښتو معنا کړی.<br>۲- د ?Which Tv do you like پوښتنې ته ځواب ورکړی.<br>۳- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې نوي کلمې لکه report, news, face book, television, twitter, internet ولوستلی. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۱۹ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې په خپلو کتابچو کې ولیکي او ځواب ورکړي. |

# Unit thirteen
# Media
## Lesson Two

**مخونه: ۱۲۱-۱۲۰**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- متن په سمه توګه ولولي.

۲- د متن په مفهوم پوه شي.

۳- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځینو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

۴- سمې او نا سمې جملې وپیژني.

**نوي لغتونه:** electronic, device, screen, receive, signal, view, grey, flatted, lighter, antenna.

بریښنائي، پرزه یا وسیله، پرده، رسیدل، اشاره، منظره، خاکی رنګ، هوار، آنتن

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړي دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

۱- د جملې د لیکلو قانون بیان کړئ؟

۲- د news او Television کلمې په پښتو معنا کړي.

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې وکړې:

- په کور کې تلویزیون لرئ؟
- د تلویزیون د څو شبکو نومونه واخلئ؟
- څو ډوله تلویزیونونه پیژنئ؟
- د تلویزیون کومه خپرونه مو ډیره خوښیږي؟

- د کتاب ۱۲۰ مخ د Let's Read د برخې متن په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې د کلمو تلفظ ته په ځیر سره غوږ ونیسی او د هغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي کرښې وکاږي.
- له زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن په لوړ غږ ولولي وروسته متن یو ځل بیا په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي.
- زده کوونکو ته د دوه کسیزه ډلو په توګه دنده ورکړئ چې د ۱۲۱ مخ د Ask and answerد برخې فعالیت د ځانو سره تمرین کړي وروسته له هغې نه د ټولګي د مختلفو برخو له زده کوونکو څخه وغواړئ تر څو فعالیت په لوړ غږ سره کار وکړی او تاسې هم د هغوی سره د پوښتنو په ځوابولو کې لازمه مرسته وکړئ.
- زده کوونکو ته په ځانګړي ټوګه دنده ورکړئ چې د ۱۲۱ مخ د True and False د برخې جملې د ځانونو سره په پټه خوله ولولي او هره جمله که سمه وي د T او که نا سمه وي نو د fپه تورو علامه ګذاري کړي. وروسته له هغې له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ تر څو یوه یوه جمله په لوړ غږ

| |
|---|
| ولولي او ووايې چي جمله سمه وه او که نا سمه. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو ل پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د .Nowadays TVs’ are flatted screen په پښتو ژباړلای شي؟<br>۲- د انټرنټ او کور کلمې په انګليسي ووايې؟<br>۳- آيا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په ننني لوست کې يو متن د تلويزيون په هکله ولوست. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۲۱ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې په خپلو کتابچو کې وليکي او ځواب ورکړي. |

# Unit thirteen
# Media
## Lesson Three

**مخونه: ۱۲۳-۱۲۲**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

موخې زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- د پوښتنو جملې په سمه توګه ولولي.

۲- پوښتنو ته ځوابونه ورکړي.

۳- نوي عبارتونه ولولي.

۴- د نويو کلمو په معنا پوه او په ورځپنو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

نوي لغتونه:

**نوې**

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیري ورځې لوست تکرار کړي دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

۱- د station او broadcastکلمې په پښتو معنا کړئ؟

۲- د Who listened to the news last night? پوښتنې ته ځواب ورکړی.

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې وکړئ:

- آیا تیره شپه مو د تلویزیون خبرونه ولیدل؟
- face bookڅه شي دی؟
- د تلویزیون کومه خپرونه مو ډیره خوښیږي؟

- د ۱۲۲ مخ د Listen and repeat د برخې جملې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دوه کسیزه ډلو په توګه دا فعالیت پخپلو کې سرته ورسوي.
- د ۱۲۲ مخ د Lets learn something new عبارتونه په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې عبارتونه په لوړ غږ ولولي.
- د ۱۲۳ مخ د Let's work together د برخې جملې په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي همدارنګه له زده کوونکو څخه وغواړئ تر څو په ځیر سره تاسې ته غوږ ونیسي وروسته له هغې د څو زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ تر څو جملې یو د بل سره پوښتنه وکړي او ځواب ورکړي د مثال په توګه یو زده کوونکې دې پوښتنه وکړي او دویم زده کوونکې دې ځواب ولولي او ووایې.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو ل پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د Did you give an interview? پوښتنې ته ځواب ور کړی.<br>۲- د Use a face book, studied online عبارتونه په پښتو معنا کړئ؟<br>۳- انټرنټ او کور کلمو ته په انګلیسي کې څه وايي؟<br>۳- آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننی لوست کې نوي عبارتونه لکه: Give an interview, got an email, texted a message, studies online, used face book, listen to the news. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د Let's work together د برخې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit thirteen
# Media
## Lesson four

**مخونه: ۱۲۵-۱۲۴**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- محاوره په سمه توګه ولولي او تمثیل یې کړي.

۲- پوښتنو ته په سمه توګه ځواب ورکړي.

۳- د نوي عبارتونو څخه په جملو کې ګټه واخلي.

۳- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځینو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

نوي لغتونه: wonderful, boring, alone

عجیب، یواځی، ستړی کوونکی

**نوې اصطلاح ګانې:**

دلوست د تدریس میتودونه: ځانګړی او ډله ییز

د لوست مرستندویه توکي: تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دی لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړي دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

۱- څوک پوهیږي چې facebook د کومو کارونو له پاره دی؟

۲- د listened to the news, used face book عبارتونه په پښتو معنا کړئ؟

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو له پاره لاندې پوښتنې وکړئ:

- د کریکټ لوبه مو خوښیږي؟
- څوک د Do you like cricket? پوښتنې ته ځواب ورکوي؟
- د کریکټ کومه لوبډله مو خوښیږي؟

- د ۱۲۴ مخ د dialogue د برخې محاوره په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره تاسې ته غوږ ونیسی او د هغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي کرښې وکاږي.
- د څو زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ چې محاوره یو د بل سره په لوړ غږ تمثیل کړي وروسته له هغې محاوره یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړي.
- له زده کوونکو وغواړئ تر څو د خپل نږدې ملګري سره د کتاب د ۱۲۴ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې کار وکړي. وروسته د ټولګي د مختلفو ځایونو زده کوونکو څخه وغواړئ چې فعالیت په لوړ غږ سره کار وکړي او تاسې هم د ځواب په ورکولو کې ورسره مرسته وکړئ.
- زده کوونکو ته دنده ورکړي تر څو د کتاب د۱۲۵ مخ د Look and Circle د برخې جملې د خپل ځانونو سره په پټه خوله ولولي او د سمې جملې نه دایره تاوه کړي. وروسته له هغې د زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ تر څو یوه یوه جمله په لوړ غږ ولولي او د هغې جملې نه چې دایره یې ترې تاوه کړې ده ووایې.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ له حاصلولو د پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د I listened to the news جمله په پښتو معنا کړی.<br>۲- د Study online, got an email عبارتونه په پښتو معنا کړي؟<br>۳- د Message, Friend کلمې په پښتو معنا کړي؟<br>۴- د Use a face book, studied online عبارتونه په پښتو معنا کړی.<br>۳- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې د نویو عبارتونو استعمال په جملو کې ولوست. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د .Look and circle جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit thirteen
# Media
## Lesson five

**مخونه: ۱۲۷–۱۲۶**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱– د ملگرتیا او دوستۍ د لیك نمونه وپیژني .

۲– د یوه لیك برخې وپیژني.

۳– د دوستۍ لیك د مخې نه ولیکي.

۳– د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځېنو خبرو اترو کې ترې گټه واخلي.

**نوي لغتونه:** Greetings, body, closing, signature, art, skill, allow, innovative

د احوال پوښتنه کول، بدن، ترل، لاسلیك، هنر، مهارت، اجازه ورکول، نوښت

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانگړې

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړي دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>۱– Facebook د کومو کارونو لپاره پکاریږي؟<br>۲– د Listened to the news, used face book عبارتونه په پښتو څه معنا ورکوي؟<br>د زده کوونکو پام راگرځول نوي لوست ته او د انگیزې د پیدا کېدو له پاره لاندې پوښتنې وکړئ:<br>• آیا تراوسه مو کوم لیك خپل ملگري او یا ښوونکي ته لیکلی دی؟<br>• خو ډوله لیکونه پیژنئ؟<br>– د لیك نمونه او د هغې برخې زده کوونکي ته په عملي توگه وروښایاست وروسته د لیك متن په لوړ غږ سره ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي کرښې وکاږي وروسته له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړئ چې د لیك متن په لوړ غږ سره ولولي.<br>– د زده کوونکو څخه وغواړئ چې د لیك متن د خپلې خوانه د دوستۍ لیك پخپلو کتابچو کې ولیکي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو له پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱– لیك د څو برخو څخه جوړ شوی دی؟<br>۲– څو ډوله لیکونه پیژنئ؟<br>۳– آیا نننی لوست درته په زړه پوري و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننی لوست کې د ملگرتیا د لیك لیکل زده کړل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو یو د دوستۍ یا ملگرتیا لیك پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Fourteen
## Sports
### Lesson one

**مخونه:** ۱۳۰–۱۲۹

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

موخې زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱– محاوره ولولي او تمثیل یې کړي.

۲– د محاورې په مفهوم وپوهیږي.

۳– د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځېنو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

نوي لغتونه: bad, actually, wasting, totally, mistake, remain

خراب، حقیقتاً، ضایع کول، په ټوله کی، غلطی، پاتی کیدل

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

۱– د یو لیک برخې ووایاست؟

۲– څو ډوله لیکونه پیژنئ؟

۳– body د لیک کومه برخه ده؟

د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو له پاره لاندې پوښتنې وکړئ:

- لوبې زموږ د روغتیا له پاره څه ګټې لري؟
- د کومو لوبو سره مینه لرئ؟
- دچا سره مو لوبې کول خوښیږي؟

- د ۱۲۹ مخ د dialogue د برخې محاوره په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي کرښې وکاږي وروسته له زده کوونکو څخه د دوه کسییزه ډلو په توګه وغواړئ چې محاوره په لوړ غږ سره ولولي او تمثیل یې کړي وروسته یو ځل بیا محاوره په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۳۰ مخ د Exercise د برخې جملې د ځان سره په پټه خوله ولولي او د هغې تش ځایونه په ورکړل شویو کلمو سره ډک کړي وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ تر څو یوه یوه جمله په لوړ غږ سره ولولي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه تش ځایونه غلط ډک او تکمیل کړي و بل زده کوونکي ته وخت ورکړئ.

**د تمرین حل:**

Shoaib: Good afternoon. How are you?
Sayed: Good afternoon. I am fine. What about you?
Shoaib: Not so bad. Where are you going?
Sayed: I am going to play volley ball with my friends. Will you play with us?
Shoaib: Actually I do not like any types of sports and games. They are totally wasting of time.
Sayed: Very sad. You are a good student, but you do not know about the importance of sports.
Shoaib: Are they importance for us?
Sayed: Of course. They help us to be active and fresh. They are also a form of a good exercise.
Shoaib: Really I have made a great mistake. As a result I always remain sick and weak. But it needs so much time.
Sayed: you can play only in the afternoon or when you get free at that time you can play.
Shoaib: So let’s go. I will also play with you.
Sayed: That is great.

**ارزونه:**

د خپل ډاډ د حاصلولو له پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:

۱- د Fresh او Sickکلمې په پښتو معنا کوي؟

۲- د !That is great جمله په پښتو څه معنا ورکوي؟

۳- څوک ?How are you پوښتنې ته ځواب وايي؟

۳- آیا نننی لوست درته په زړه پورې و؟

**د لوست لنډیز:**

تاسې په نننی لوست کې د لوبو په هکله ولوستل او تمثیل موکړل.

**کورنی دنده:**

زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د I, when, active, sport, how کلمو ته یوه جمله جوړ کړي.

# Unit fourteen
# Sports
## Lesson Two

**مخونه:** ۱۳۲-۱۳۱

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې**: زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- متن ولولي.

۲- د متن په معنا او مفهوم پوه شي.

۳- د لوبو نومونه به وپیژني.

۴- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځینو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړی زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>۱- څوک د Where are you going? پوښتنې ته ځواب ورکړي.<br>۲- د Time, wasting کلمې په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې وکړئ:<br>• لوبې زموږ د روغتیا له پاره څه ګټه لري؟<br>• د کومو لوبو سره مینه لرئ؟<br>• څو ډوله لوبې پیژنئ؟<br>- د ۱۳۱ مخ د Time to Read د برخې متن په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي کرښې وکاږي. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن په لوړ غږ سره ولولي وروسته یو ځل بیا متن په لوړ غږ ولولي او ویې ژباړي.<br>- زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د ۱۳۱ مخ د .Ask and answer د برخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره په کراره تمرین کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه په دوه کسیزه توګه وغواړئ تر څو تمرین په لوړ غږ سره تکرار کړي او کار وکړي د مثال په توګه یو زده کوونکی پوښتنه ولولي او بل زده کوونکې دې ځواب ورکړي.<br>- د ۱۳۲ مخ دListen and repeat د برخې د لوبونو مو نه په لوړ غږ ولولئ اوله زده کوونکو څخه وغواړئ چې کلمې تاسې نه وروسته تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې د لوبو نومونه په لوړ غږ ولولي او تاسې د هغوی سره د کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ. |
| |

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو له پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>۱- پنگ پانگ څه ډول کېږي؟<br>۲- د How many players play in football? پوښتنې ته څوك ځواب ور کړی.<br>۳- د goal, team کلمې په پښتو کې څه معنا ورکوي؟<br>۳- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په ننني لوست کې يو متن د My favorite game په هکله ولوست او همدارنگه د ځينو لوبو نومونه مو هم زده کړل. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۳۱ مخ د Ask and answer د برخې جملې په خپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit fourteen
# Sports
## Lesson three

**مخونه: ۱۳۴-۱۳۳**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې**: زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

1- کېسی یا معما حل کړي.

2- د کېسی د حلولو طریقه زده کړي.

3- د معما د فعالیت په موخه پوه شي.

4- د خپلې خوښې لوبو نومونه وویلای شي.

5- د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځنیو خبرواترو کې ترې ګټه واخلي

**نوي لغتونه:** Bowling, cycling, boxing, walk ing,

د باولنګ لوبی، د بایسکل دوانی، بکسنګ،

**د لوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی او ډله ییز.

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر.

| **فعالیتونه:**<br>ددې له پاره چې ډاډ حاصل کړی زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ.<br>1- د Where are you going? پوښتنې ته ځواب ورکړی.<br>2- د wasting او time کلمې په پښتو څه معنا ورکوي؟<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیداکېدلو په هیله لاندې پوښتنې له زده کوونکو وکړئ.<br>➕ لوبې زموږ روغتیا ته څه ګټې لري؟<br>➕ کومو لوبو سره مینه لرئ؟<br>➕ خو ډوله لوبې پیژنئ؟<br>- زده کوونکي په دریو یا څلورو تنو ډلوویشی او دنده ورته ورکړی. ترڅو د 133 مخ د cross word د برخې انځور ته په ځیر سره وګوري او د تورو په جدول کې د هغو نومونه پیدا کړي وروسته له هرې ډلې څخه په وارسره وغواړئ ترڅو دانځور نوم به یې چې پیدا کړی دی ولولي او نوروته یې وښايي.<br>- د 134 مخ د lets practice برخې د لوبو نومونه په لوړغږ ولولي او له زده کوونکو وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي او له تاسې وروسته یې تکرار کړي. وروسته له څو زده کوونکو وغواړئ ترڅو کلمې په لوړغږ ولولي.<br>- له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ ترڅو ووايي چې کومې لوبې یې خوښیږي خو لومړی ورکړل شوي مثالونه په عملي توګه تاسو ولولئ او معنا یې کړئ. |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ حاصلو له پاره له زده کوونکو څخه لاندنې پوښتنې وکړئ. |

| |
|---|
| 1- کومو لوبو سره مينه لرئ؟<br>2- لامبووهل او قدم وهلو ته په انګلیسي کې څه وايي؟<br>3- پنګ پانګ څه ډول لوبه ده؟<br>4- آيا نننی لوست درته په زړه پوري و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننی لوست کې د کېسی توري او کلمې حل کړې او همدارنګه مو زده کړل چې کومې لوبې موخوښيږي زده کړې. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده وسپارئ ترڅو د 134 مخ د انځورونو د برخې له پاره يوه يوه جمله جوړه کړي او په خپلو کتابچو کې وليکي. |

**د 134 مخ د cross word د تمرين د حل بڼه**

| | | | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| f | v | o | l | l | e | y | b | a | l | l |
| o | c | p | n | c | o | l | k | f | w | t |
| o | i | i | c | y | c | l | i | n | g | e |
| t | a | n | r | w | q | f | y | g | f | a |
| b | k | g | i | d | s | j | s | y | v | k |
| a | r | p | c | s | j | d | k | q | l | w |
| l | f | o | k | h | d | c | a | w | i | o |
| l | e | n | e | d | x | v | b | y | j | n |
| u | y | g | t | s | z | k | o | r | l | d |
| f | l | o | s | n | o | o | k | e | r | o |
| b | a | s | k | e | t | b | a | l | l | q |

# Unit fourteen
# Sports
## Lesson Four

**مخونه:** ۱۳۴-۱۳۳

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- شعر په سمه توگه ولولي.

۲- د شعر په معنا پوه شي.

۳- سمه او نا سمه جمله وپیژني.

۴- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځېنو خبرو اترو کې ترې گټه واخلي.

**نوي**

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانگړی او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

**فعالیتونه:**

د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:

۱- د Where are you going? پوښتنې ته ځواب ورکړی.

۲- د I like walking جمله په پښتو څه معنا ورکوي؟

د زده کوونکو پام راوگرځول نوي لوست ته او د انگیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې وکړئ:

- د المپیک د حلقو سیمبول څو رنگه لری؟
- کومې المپیکې لوبې پیژنئ؟
- د فوټبال په لوبه کې څو لوبغاړي لوبه کوي؟

- د ۱۳۵ مخ د Listen and repeat د برخې شعر په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو په معنا چې نه پوهیږي کرښې ترې لاندې وباسي وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانگړي توگه وغواړئ چې شعر په لوړ غږ سره ولولي او تاسې له هغو سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ وروسته یو ځل بیا شعر په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ.
- زده کوونکو ته دنده ورکړئ چې د ۱۳۵ مخ د True, false د برخې جملې د ځان سره په پټه خوله ولولي او که جمله سمه وي د Tپه توري او که نا سمه وي د F په توري سره علامه گذاري کړي. وروسته له زده کوونکو څخه د دوه کسیزه ډلو په توگه وغواړئ چې فعالیت سرته ورسوي د مثال په توگه یوه زده کوونکي دې جملې ولولي او بل دې ووایې چې سمه ده یا نا سمه.
- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۳۶ مخ د Read, think and match د برخې جملې د ځان سره په پټه خوله ولولي او د سمې کلمې شاوخوا دایره وکاږي. وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانگړي توگه وغواړئ چې تر څو یوه یوه جمله په لوړ غږ ولولي او هغه کلمې چې دایره یې ترې تاوه کړي ده ووایې. په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو غلطي کړي وي بل زده کوونکي ته وخت او موقع ورکړئ.
- د زده کوونکو نه په ځانگړي توگه وغواړئ چې د ۱۳۶ مخ د Fun with words د برخې انځورونو ته وگوري او د هغو نومونه په لوړ غږ سره سپیل یا توری یې ووایې.

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو له پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د What sport do you play in winter? پوښتنې ته ځواب وايي؟<br>۲- په انګلیسي ویلای شي چي کومه لوبه يې خوښه ده؟<br>۳- سکي څه ډول لوبه ده؟<br>۳- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په ننني لوست کې یو شعر د لوبو په هکله ولوست. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښونه وکړئ تر څو د ۱۳۵ مخ شعر پخپلو کتابچو کې ولیکې. |

# Unit fourteen
# Sports
## Lesson five

**مخونه: ۱۳۸-۱۳۷**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې**: زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- د المپيک د کړۍ په معنا پوه شي.

۲- ځینی المپیکې لوبې وپیژني.

۳- د لوبو نومونه داړوندو انځورنو سره یو ځای کړي.

۴- د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځېنو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دی لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړی دی لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>۱- د cricket, tennis کلمې سپیل کړی.<br>۲- bowling څه ډول لوبه ده؟<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندنې پوښتنې وکړئ:<br>- د المپیک د لوبو کړۍ څو رنګه لرئ؟<br>- آیا پوهیږئ چې د المپیک پنځه کړۍ څه معنا ورکوي؟<br>- د ۱۳۷ مخ د Let's learn something new د المپیک د لوبو د برخې متن په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو په معنا چې نه پوهیږي کرښې ترې لاندې وباسی وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې متن او کلمې په لوړ غږ سره ولولی او تاسې له هغو سره د سختو کلمو په تلفظ کې مرسته وکړئ وروسته یو ځل بیا متن ولولی او ویې ژباړي.<br>- زده کوونکې ته دنده وسپارئ چې د ۱۳۸ مخ د read and match د برخې جملې د ځان سره په پټه خوله ولولي او هغه د اړوندو انځورونو سره وصل کړی وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړې توګه وغواړئ تر څو یوه یوه کلمه په لوړ غږ ولولي او انځوریي وښایې په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړی، وخت بل زده کوونکې ته ورکړئ. |
| **ارزونه:** د خپل ډاډ د حاصلولو د پاره لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ.<br>۱- د پنځو کړیو موخه ویلای شي؟<br>۲- د المپیک د څو لوبو نومونه ووایاست؟<br>۳- د archer او fencing کلمو ته په پښتو کې څه وایي؟<br>۳- آیا ننني لوست درته په زړه پورې و؟ |

| |
|---|
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نننې لوست کې د المپيک د پنځو کړيو په معنا او مفهوم وپوهيدلئ. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د read and match د برخې کلمې پخپلو کتابچو کې وليکي. |

# Unit Fifteen
## Review
### Lesson one

**مخونه:** ۱۴۰– ۱۴۱

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱– محاوره په سمه توګه ولولي.

۲– د محاورې په مفهوم او معنا پوه شي.

۳– د نویو کلمو په معنا پوه او په ورځینو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

**نوي لغتونه:** Little, tired, participate, festival, fantastic, anything, fun, trip

لږ، ستړي، برخه اخیستل، جشن، په زړه پورې، کوم یو شی، ساعت تیری، سفر

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړې او ډله ییز

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| **فعالیتونه:** |
|---|
| د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو ته مو د تیري ورځې لوست تکرار کړئ او لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>۱– د پنځو کړیو موخه وواياست.<br>۲– د archer او fencing کلمو معناوې په پښتو کې څه ورکوي؟<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو د لپاره لاندې پوښتنې وکړئ:<br>آس او قهوې ته په انګلیسي کې څه وایي؟<br>د How are you today? پوښتنې ته ځواب ووایی.<br>– د ۱۴۰ مخ د dialogue د برخې محاوره په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې تاسې ته په ځير سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو لاندې چې په معنا یې نه پوهیږي کرښې وکاږي. وروسته له زده کوونکو څخه د دوه کسیزه ډلو په توګه وغواړئ چې ډیالوګ د خپل نږدې ملګري سره په کراره تمرین کړي.<br>– محاوره یو ځل بیا په لوړ غږ ولولئ او کار پرې وکړئ. وروسته بیا محاوره په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ.<br>– زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د ۱۴۱ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنې د خپل نږدې ملګري سره په کراره تر سره او تمرین یې کړي. وروسته د ټولګي د مختلفو ځایونو له زده کوونکو څخه وغواړئ چې فعالیت په لوړ غږ سره ولولي او اجرایې کړي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه و نه توانید پوښتنو ته په سمه توګه ځواب ورکړي وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.<br>د ۱۴۱ د Listen and practiceد برخې کلمې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکې نه وغواړئ چې له تاسې وروسته یې تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ تر څو کلمې په لوړ غږ سره ولولي. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱– د Where did he go? پوښتنې ته ځواب ووایی. |

| |
|---|
| ۲- دDid you enjoy the lesson? پوښتنې ته ځواب ووایې.<br>۳- د Cycling, coffee, pilot کلمې څوک په پښتو معنا کوي؟<br>۴- د نني لوست څخه مو څه زده کړل؟<br>۵- آیا ننی لوست تاسې په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډيز:**<br>تاسې په نني لوست کې یوه محاوره ولوستله او همدارنگه د boxing, cycling, horse, coffee, pilot او internet کلمې مو تکرار کړې. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړی تر څو د ۱۴۱ مخ د Ask and answer د برخې پوښتنو ته په خپلو کتابچو کې ځواب ورکړي. |

# Unit Fifteen
# Review
## Lesson Two

**مخونه:** ۱۴۲ –۱۴۳

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکې به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- جملې په سمه توګه ولولي.

۲- د جملو په معنا پوه شي.

۳- د پوښتنې کولو جملو ته ځواب ورکړي.

دلوست د تدریس میتودونه: ځانګړي

د لوست مرستندویه توکي: تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو ته مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړئ او لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>۱- د How are you today? پوښتنې ته ځواب ورکوي؟<br>۲- د آس او قهوې کلمو ته په انګلیسي څه وايي؟<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>- د It is a taxi جمله په پښتو معنا او وژباړي.<br>- د What does he do? پوښتنې ته ځواب ورکړي.<br>- د It is time to read د برخې جملې په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې په ځیر سره غوږ ونیسي. وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ تر څو یوه یوه جمله په وار سره په لوړ غږ ولولي.<br>- د ۱۴۲ مخ د It is time to read په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو وغواړئ چې له تاسې وروسته یې تکرار کړي وروسته له څو زده کوونکو نه وغواړئ چې کلمې په لوړ غږ سره ولولي.<br>- زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د ۱۴۳ د Read and chooseد برخې انځورونو ته وګوري او د انځورونو لاندې جملې ولولي او د سمو جملو نه دایره تاوه کړي. وروسته له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ چې دوه دوه جملې په لوړ غږ ولولي او د سمې جملې نه یې چې دایره تاوه کړې ده ووايي.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۴۳ مخ د Read and sort د برخې کلمې له ځان سره په پټه خوله ولولي او هغه د ډول او ډلې له مخې په کټګوریو وویشي وروسته له څو زده کوونکو نه په ځانګړې توګه وغواړئ چې یوه یوه کټګوري په لوړ غږ ولولي په هغه صورت کې چې یو زده کوونکی غلطي وکړي وخت بل یوه زده کوونکي ته ورکړئ: |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د Where did he go? پوښتنې ته ځواب ووايي. |

| |
| --- |
| ۲- څوک ?Did you like cricket پوښتنې ته ځواب ورکړی.<br>۳- د Baker, green tea, train کلمو په پښتو معنا کړي؟<br>۴- د نننی لوست څخه مو څه زده کړل؟<br>۵- آیا نننی لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نننی لوست کې هغه کلمې او جملې چې په تیرو لوستونو کې راغلې وې تکرار کړې. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۴۲ مخ دTime to read د برخې جملې په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Fifteen
# Review
## Lesson Three

**مخونه: ۱۴۴– ۱۴۳**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱– د انځورونو نومونه په سمه توګه ولیکې.

۲– کلمې په سمه توګه سپیل کړي.

۳– انځورونه ته جملې ولیکي.

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو ته مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړئ او لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>۱– د What does he do? پوښتنې ته ځواب ووایې.<br>۲– دا جمله It is a bus په پښتو معنا کړی.<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې ورڅخه وکړئ:<br>- د Cleaner کلمه سپیل کړی.<br>- د لوست کلمې ته یوه جمله جوړ کړی.<br>– زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۴۴ مخ د Writing د برخې انځورونو ته په ځیر سره وګوري او د هغوي نومونه په چوکاټو کې په پنسل ولیکي وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځانګړي توګه د یوه یوه انځور نوم په لوړ غږ ولولي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړي وخت بل زده کوونکي ته ورکړئ.<br>– زده کوونکو ته دنده وسپارئ تر څو د ۱۴۴ د Fun with wordsد برخې نا بشپړې کلمې په مناسبو تورو سره ډکې او تکمیل یې کړي. وروسته له څو زده کوونکو نه په ځانګړي توګه وغواړئ چې د ټولګي مخې ته راشي او یوه یوه کلمه په تخته ولیکي په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو نه غلطي وکړه. وخت او موقع بل زده کوونکي ته ورکړئ.<br>– زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د ۱۴۵ مخ د job's د برخې انځورونو ته وګوري او د هر انځور له پاره یوه یوه جمله ولیکي وروسته له زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ تر څو یوه یوه جمله په لوړ غږ ولولئ په هغه صورت کې چې یو زده کوونکې غلطي وکړي، بل ته موقع او فرصت ورکړئ چې سمه جمله ولولي. |
| |

| |
|---|
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱- د Teacher له پاره یوه جمله جوړه کړئ.<br>۲- د اورغور څوونکو او نانوایي کلمو ته په انگلیسي کې څه وایي؟<br>۳- د .He is a taxi driver جمله په پښتو معنا کړئ.<br>۴- د نني لوست څخه مو څه زده کړل؟<br>۵- آیا نننی لوست تاسې په زړه پورې و؟ |
| **د لوست لنډیز:**<br>تاسې په نني لوست کې هغه کلمې او جملې چې په تیرو لوستونو پورې یې اړه درلوده تکرار کړې. |
| **کورنی دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۴۵ مخ د job's د برخې لپاره چې یې جملې لیکلې دي په خپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Fifteen
# Review
## Lesson Four

**مخونه: ۱۴۶– ۱۴۷**

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکی به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱– محاوره سمه ولولي او تمثیل یي کړی.

۲– د محاورې مفهوم باندې پوه شي.

۳– د نویو کلمو په معنا پوه شي او په ورځېنو خبرو اترو کې ترې ګټه واخلي.

نوې لغتونه: Hungry, lunch, burger, rice, tasty

وږی، غرمه، برګر، وریجی، خوندور

دلوست د تدریس میتودونه: ځانګړی

د لوست مرستندویه توکي: تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دې لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو ته مو د تیرې ورځې لوست تکرار کړئ او لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>۱– د fire fighter او cleaner کلمې سپیل کړی.<br>۲– د زده کوونکې لپاره یو جمله جوړوئ.<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې ورځخه وکړئ:<br>- آیا تر اوسه مو هندي ډوډۍ خوړلې ده؟<br>- دچا سره د ډوډۍ په خوړلو کې خوشاله او خوښ یاست؟<br>– د ۱۴۶ مخ د Time to read د برخې محاوره په لوړ غږ ولولئ او له زده کوونکو نه وغواړئ چې تاسې ته په ځیر سره غوږ ونیسي او د هغو کلمو په معنا چې نه پوهیږي، کرښې دې ور ترې لاندې وباسي. وروسته له زده کوونکو څخه وغواړئ چې محاوره په لوړ غږ ولولي وروسته یو ځل بیا محاوره په لوړ غږ ولولئ او ویې ژباړئ.<br>– زده کوونکو ته دنده وسپارئ چې د ۱۴۷ مخ د True or Falseد برخې جملې د خپل ځانونو سره په پټه خوله ولولي او په هغه صورت کې چې جملې سمې وي د T توري او که نا سمې وي د F توری ورته کښیږدئ. وروسته له هغې له څو زده کوونکو څخه په ځانګړي توګه وغواړئ تر څو یوه یوه جمله په لوړ غږ ولولي او ووایي چې سمه ده او که غلطه. |
| **ارزونه:**<br>د خپل ډاډ د حاصلولو په هیله لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وکړئ:<br>۱– د Sidiq, would you  like to visit India? جمله په پښتو معنا کړی.<br>۲– د Restaurant او like کلمې په پښتو معنا کړي.<br>۳– آیا ننني لوست تاسې ته په زړه پورې و؟ |

| |
|---|
| |
| **د لوست لنډیز:**تاسې په ننني لوست کې یوه محاوره د هندي ډوډۍ په هکله ولوستله.. |
| **کورنۍ دنده:**<br>زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ تر څو د ۱۴۷ مخ د True or False د برخې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي. |

# Unit Fifteen
# Review
## Lesson Five

**مخونه:** ۱۴۸

**وخت:** یو درسي ساعت (۴۵) دقیقې

**موخې:** زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي:

۱- کلمې په سمه توګه ولولي.

۲- کلمې د اړوندو انځورونو سره ربط ورکړي.

۳- په دې هکله چې سږ کال مو څه زده کړي دي خبرې وکړي؟

**دلوست د تدریس میتودونه:** ځانګړی

**د لوست مرستندویه توکي:** تخته او تباشیر

| |
|---|
| **فعالیتونه:**<br>د دی لپاره چې ډاډ ترلاسه کړئ زده کوونکو ته مو د تیري ورځې لوست تکرار کړئ او لاندې پوښتنې ترې وکړئ:<br>۱- د Sahil went to India two days ago? په پښتو معنا کړي.<br>۲- د Burger او Rice کلمې په پښتو معنا کړي؟<br>د زده کوونکو پام راګرځول نوي لوست ته او د انګیزې د پیدا کېدو په هیله لاندې پوښتنې ورڅخه وکړئ:<br>- د Doctor, nurse mechanic کلمې په پښتو معنا کړی.<br>- د mechanic کلمې ته یوه جمله جوړکړی.<br>- زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د ۱۴۸ مخ د Look and match د برخې کلمې له ځان سره په پټه خوله ولولي او د اړوندو انځورونو سره یې ربط ورکړي وروسته له څو زده کوونکو څخه وغواړئ چې په ځانګړي توګه یوه یوه کلمه په لوړ غږ ولولي او انځور یې وښايي. په هغه صورت کې چې یو له زده کوونکو څخه غلطي وکړي وخت او موقع بل زده کوونکي ته ورکړئ.<br>- د What do you learned this year? جمله په تخته ولیکئ او له زده کوونکو وغواړئ چې پخپلو منځونو کې پرې خبرې وکړي چې د سږ کال له لوستونو نه یې څه زده کړي دي؟ |